


**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست


# د ښوونکي کتاب

# د تفسیر شریف د تدریس لارښود

## لسم ټولګی





د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ ش.




د تفسیر شریف د تدریس لارښود- لسم ټولګی






درسي کتابونه د پوهنې په وزارت پورې اړه لري، اخیستنه او خرڅونه یې په کلکه منع ده. له سر غړونکو سره قانوني چلند کیږي.



moe.curriculum@gmail.com




**د پوهنې وزارت**

د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونكو
د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي
كتابونو د تاليف لوی رياست

# د ښوونكي كتاب

# د تفسير د تدريس لارښود

## لسم ټولگی

د چاپ كال: ۱۳۹۵ هـ. ش.

**ليکوالان:**

- ګل آقا "شایق"
- سخي جان "احمدزی"

**علمي او مسلکي ايډيټ:**

- محمد نور صديقي

**د ژبې ايډيټ:**

- مؤلف محمد سهراب ديدار

**ديني ، سياسي او فرهنګي کميټه:**

- محمد آصف کوچی

**د څارنې کميټه:**

- دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساينس مرکز معين
- دکتور شير علي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس.

**طرح او ډيزاين:**

- حميد الله غفاری
- محمد مصعب نائل

**د چاپ د سمون چارې:** محمد کبير حقمل د پوهنې وزارت د نشراتو او اطلاعاتو رئيس



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**د پوهنې د وزير پيغام**

د لوی خدایﷻ ډیر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پرګانه یې سمبال کړ. ډیر درود دې وي د اسلام پرګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښېنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برۍ د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهرباني له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزير**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

# سرلیکونه

# سريزې

**د تفسير په هکله لنډ معلومات**

مخکې له دې چې د لوست په برخه کې او د لسم ټولګي د تفسير شريف د ښوونکی د لارښود په هکله بحث وکړو، ضروري ګڼو چې ددې کتاب په موضوعاتو لنډ مرور وکړو؛ ترڅو له دې لارې تفسير پوهنې او د تفسير ښوونيزو موخو ته په آسانه توګه ورسيږو او په دې سره محترمو ښوونکو او ګرانو زده کوونکو ته پوره آسانتياوې برابرې شي.

**د اسلام په لمړيو شيبو کې د قرآن کريم جمع او ترتيب**

د اسلام د لمر په ځليدو سره (د اسلام په صدر کې) د قرآن کريم راجمع کول او ساتنه په دوو طريقو سره سرته رسيده:

۱- د قرآن کريم آيتونه هماغسې چې نازليده، صحابه کرامو رضی الله عنهم به هغه زده کول چې د قرآن کريم آيتونه له ورکيدو او يا کوم بدلون څخه په امن کې وي.

۲- دويمه طريقه د قرآن کريم د ساتلو د پاره ليکنه وه، له دې امله چې په **جزيرة العرب** کې ليکنه او د ليکنې ذريعې او اسباب لږ وو، نو صحابه کرامو رضی الله عنهم د قرآن کريم په ليکنه کې له کاڼو، لرګيو او د کجورو (خرماوو) د ونو له پوستکو څخه په استفادې سره د قرآن کريم آيتونه په همدې شيانو ليکل او له ځان سره به يې ساتل.

د اسلام ستر پيغمبر حضرت رسول اکرمﷺ د قرآن کريم د ليکنې د پاره، يو شمير صحابه وو رضی الله عنهم ته دنده سپارلې وه چې ځينې يې دادي:

۱: حضرت زيد بن ثابتؓ

۲: حضرت ابی بن کعبؓ.

۳: حضرت معاذ بن جبلؓ.

۴: حضرت معاويه بن ابی سفيانؓ.

د قرآن کريم ليکنه د اسلام په لومړيو شيبو کې په ساده ډول سره ترسره کيده او دې ليکنې نښې او علامې (حرکتونه) لکه زور، زير، پيښ، مد او غړوندی نه درلودل.

وروسته له دې کله چې د اسلام د دين پراختيا نورو سيمو ته وغځيده مختلف قومونه او نژادونه د اسلام په مبارک دين مشرف شول، زيات مسلمانان چې د هغوی ژبې عربي نه وې د قرآن کريم د لوستلو له مشکل سره مخامخ وو، له دې وجې نه علماوو په قرآن کريم کې د نښو او علامو ايښودل ضروري وګڼل، دا کار د عبدالملك بن مروان اموي د خلافت په وخت کې ترسره شو او د قرآن کريم تلاوت د غير عربو خلکو لپاره آسان وګرځيده.

**د قرآن کريم د نيولو او تلاوت آداب**

قرآن مجيد بايد په اوداسه واخستل شي، الله تعالی فرمايي: ﴿لَّا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ﴾ [الواقعه- ۷۹].

يعنې: نه مسح کوي قرآن کريم مګر پاک خلك.

قرآن کريم بايد په ډېر درنښت سره واخستل شي او هغه ډول چې موږ نور شيان عادتاً نيسو او اخلو، ونه نيسو. او همدارنګه نه ښايي قرآن مجيد له خپل ځان څخه کښته کيږدو، پښې او شا د قرآن کريم لوري ته بايد نه کړو همدارنګه غوره دا ده چې د قرآن شريف تفسير، احاديث، فقه، سيرت او نور ديني او اسلامي کتابونه، پرته له اوداسه ونه اخستل شي، او درناوی يې وشي، ځکه دا کتابونه ټول د قرآن کريم شرحه او تفصيل دی.

**یادونه:** د ماشومانو لپاره د قرآن کریم نیول، اخستل د تعلیم او زده کړې لپاره د اوداسه نه پرته جایز دی ځکه منع کول یې د قرآن کریم د حفظ او تعلیم لپاره خنډ ګرځي.
که چیرې قرآن کریم او نور دیني کتابونه پوښ ولري چې له هغو نه جدا وي، په دې صورت کې یې نیول بی له اوداسه څخه هم روا دي.
غوره او ښه خبره داده چې د تفسیر شریف استاذ هر وخت خپل زده کوونکي وهڅوي چې د قرآن کریم، تفسیر شریف او نورو دیني کتابونو په درسي ساعتونو کې په اوداسه واوسي.

**استعاذه**

استعاذه په لغت کې پناه غوښتلو ته وایي او په اصطلاح کې «**اعوذ بالله من الشیطان الرجیم**» ویل دي یعنې پناه غواړم په الله د رټل شوي شیطان له شر څخه.
استعاذه د قرآن کریم له تلاوت څخه مخکې سنت ده؛ ترڅو د شیطان له شر څخه خوندي او د تلاوت خنډ ونه ګرځي. الله تعالی په دې اړه په قرآن کریم کې فرمایلي دي:﴿ **فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ**﴾ [نحل ـ ۸۹]. یعنې هرکله دې چې قرآن تلاوت کاوه نو په الله جل جلاله سره د رټل شوي شیطان له شره پناه غواړه.

**بسمله**

یعنې د "بسم الله الرحمن الرحیم" ویل د قرآن کریم د تلاوت لپاره سنت دی؛ ځکه د اسلام خوږ پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «كُلُّ أمرٍ ذِي بَالٍ لَم يبدأ بِبِسمِ اللهِ فَهُوَ أبتَر». ژباړه: هر هغه کار چې د خدای تعالی له نامه پرته پیل شي، نو هغه کار به بی برکته او بی خیره وي.

**د قرآن کریم د تلاوت آداب**

قرآن کریم باید په پاک ځای کې ولوستل شي، د تلاوت په وخت کې باید د قبلې په لوري ناست وي، د قرآن کریم ترتیل یعنې د تجوید رعایت کول ضروري دي. معنا او مفهوم ته یې باید پاملرنه وشي، د عذاب د آیتونو په وخت کې د الله نه پناه وغوښتل شي.
په هغه ځای کې چې خلک په نورو چارو باندې مشغول وي او د قرآن کریم تلاوت ته غوږ نه نیسي، لازمه ده چې قرآن مجید په چوپتیا سره ولولي که نه لوستونکی ګنهګاریږي.
د حضرت علی رضي الله عنه څخه پوښتنه وشوه چې د ترتیل معنی څه ده؟ د خدای تعالی په دې قول کې﴿وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا﴾ [مزمل ـ ۴].
په ځواب کې یې وفرمایل: د قرآن کریم په تجوید سره لوستل او په خپل ځای کې وقف کول دي.
په پایله کې ویلی شو چې د قرآن کریم د نص په تلاوت کولو سره یوځای زړه، ژبه او ذهن درې واړه باید ښه متوجه او مشغول وي.

# لومړی لوست: د تفسیر د علم مفهوم او ارزښت

**مخ: ۱ – ۴**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د تفسیر په لغوي او اصطلاحي معنا او مفهوم ښه پوه شي.
- د تفسیر اقسام او ځانګړتیاوې وپېژني.
- د افغانستان د علماوو ونډه د تفسیر د علم او مفسرینو په هکله بیان کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

تفسیر په لغت کې د (فَسّرَ) له کلمې څخه اخستل شوی او د واضح کولو، کشفولو او بیان په معنا دی.

الله تعالی فرمايي﴿وَلَا يَأْتُونَكَ بِمَثَلٍ إِلَّا جِئْنَاكَ بِالْحَقِّ وَأَحْسَنَ تَفْسِيرًا﴾ [فرقان ـ ۳۳].

تفسیر په اصطلاح کې له هغو اصولو او قواعدو څخه عبارت دی چې د هغه په واسطه د کلام الله معناګاني، د بشر د طاقت په اندازه پېژندل کیږي.

**د تفسیر د علم موضوع:** د تفسیر د علم موضوع، کتاب الله (قرآن کریم) دی.

**د تفسیر د علم موخه:** د الله ﷻ د کلام د معنا پېژندنه ده.

**د تفسیر د علم ګټې:** فوز دارین (د دواړو جهانونو کامیابي او نیکمرغي) ده، چې د الله پاک د اوامرو په سرته رسولو او له نواهیو څخه یې په ډډه کولو سره ترلاسه کیږي.

**د تفسیر د علم واضع:** هغه کسان دي چې الله تعالی هغوی د ﴿وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ﴾ په نوم یاد کړي دي لکه سید المفسرین حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما.

**د قرآن کریم د تفسیر مراتب او قسمونه:**

۱- د قرآن تفسیر په قرآن سره چې دا ډول تفسیر پر ټولو تفاسیرو باندې غوره او مقدم ګڼل شوی دی؛ لکه د ﴿اهدِنَـــــا الصِّرَاطَ المُستَقِيمَ﴾ د مبارک آیت تفسیر په وروستي آیت ﴿صِرَاطَ الَّذِينَ أَنعَمتَ عَلَيهِمْ غَيرِ المَغضُوبِ عَلَيهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ﴾ سره.

۲- د قرآن تفسیر په حدیث سره، رسول اکرم ﷺ د قرآن خاوند و، وظیفه او دنده یې د کلام الله بیان او شرح وه نو د هغه ﷺ تفسیر په ډېر لوړ او اوچت مقام کې ځای لري.

۳- د قرآن تفسیر د صحابه کرامو په اقوالو سره: هر کله چې صحابه کرامو رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ سره په صحبت او ملازمت کې زیاتره وختونه تیرول، او د وحی له پیغام څخه خبریدل او زده کړه یې کوله، نو د صحابه وو رضی الله عنهم خبرې په غیر قیاسي مسئلو کې لکه د نبي کریم ﷺ خبره او په ځانګړې توګه د فقهاوو صحابه وو او راشدینو خلفاوو اقوال ډېر لوړ شان لري او په اسلامي شریعت کې د پوره اعتماد څخه برخمن ګڼل شوي دي.

۴- د قرآن تفسیر د تابعینو او تبع تابعینو په اقوالو سره: رسول الله ﷺ فرمايي: (خیر القرون قرني ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم). یعنې: بهترینه د زمانو، زما زمانه ده او بیا د هغو کسانو زمانه ده چې دوی ته نږدې وي او بیا د هغو کسانو چې دوی

ته ورنږدې وي. د رسول اکرمﷺ دا مبارک حدیث د صحابه وو، تابعینو او تبع تابعینو د ښیګڼو او د اسلامي شریعت د احکامو په پوهاوي دلالت کوي.

**د کلماتو معنا**

قرآني نص: قرآني آیتونه.

تدریجي: په کراره کراره.

**د لوست طریقه:** مباحثوي، ډله ییز، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفاسیرو کتابونه، تخته او قلم.

**د لوست بهیر:**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې د ټولګی نظم او حاضري اخستلو څخه وروسته د الله جلاله په نوم حمد او ثنا سره په لوست پیل کوي او د نوي لوست سرلیک د ټولګي په تخته په ښه ښکلي او غټ خط سره لیکي او زده کوونکو ته د تفسیر د علم په هکله خبرې کوي او هغه ورته معرفي کوي.<br>د تفسیر علم ارزښت، ضرورت، اجر او ثواب په هکله معلومات وړاندې کوي او دغه علم په سمه توګه ورته معرفي کوي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د یوه زده کوونکی څخه غواړي چې د لوست د متن یوه برخه ولولي او بیا د دویم زده کوونکي څخه غواړي چې د لوست دوهمه برخه ولولي.<br>محترم ښوونکی د لوست مشکل او سختې کلمې په تخته لیکي او هغه معنا کوي او زده کوونکو څخه غواړي چې هغه ولیکي او وروسته د لوست په شرحه کولو شروع کوي او د لوست په هکله زده کوونکو سره د مناقشې په ډول بحث او خبرې اترې کوي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکي په دوه ډلو ویشي او ورڅخه غواړي چې لومړۍ ډله د تفسیر د علم تاریخي او مشهورو مفسرینو په هکله خپلو منځو کې بحث او خبرې او دویمه ډله دی د تفسیر د انواعو او ډولونو په هکله خپلو منځو کې بحث او مناقشه وکړي. په پای کې د هرې ډلې څخه یو تن د نورو په استازیتوب د ټولګي مخې ته راځي او د خپلو معلوماتو نتیجه نورو ته بیانوي چې د ښوونکی له خوا ورسره مرسته او همکاري کیږي.<br>**ارزونه**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د پوښتنو نه په استفادې سره له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي او هغوی ارزوي ترڅو چې د خپل لوست د زده کړې څخه ډاډمن شي. |
| ۱۰دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>تفسیر په لغت کې ښکاره کولو او بیان ته وایي او په اصطلاح کې هغه علم دی چې ددې په واسطې سره د قرآن کریم د الفاظو په معنا او مفهوم پوهیږو د تفسیر علم د اسلام له راتګه پیل شوی او رسول اکرمﷺ د قرآن کریم لومړنی مفسر و.<br>تفسیر د محتوا او موضوع له کبله په دوه ډوله دی:<br>۱- تفسیر بالمأثور.<br>۲- تفسر بالرأی.<br>او تفسیر د اسلوبونو او روش له نظره په څلور ډوله دی: |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقې | ۱- تحلیلي تفسیر.<br>۲- موضوعي تفسیر.<br>۳- اجمالي تفسیر.<br>۴- مقایسوي تفسیر.<br>د تفسیر شریف ډیر کتابونه دي چې ځینې یې دا دي: ابن کثیر، قرطبي، جلالین، روح المعانی، تفسیر کبیر، معارف القرآن، کشاف، کابلی تفسیر او داسې نور.<br>**کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته کورنی دنده ورکوي چې د تفسیر او مفسرینو په هکله خپل معلومات کتابچو کې ولیکي. |

## دويم لوست: د فاتحې د سورت تفسیر

**مخ: ۵ – ۹**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د فاتحې د سورت په اجمالي مفهوم پوه شي.
- د هدایت په معنا او مفهوم وپوهیږي.
- د فاتحې سورت فایدې او ګټې وپیژني او نورو ته یې بیان کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د مکي او مدني سورتونو په هکله د مفسرینو نظریات:

۱- مکي سورتونه هغه دي چې په مکه مکرمه کې نازل شوي دي؛ او مدني هغه دي چې په مدینه منوره کې نازل شوي دي.

۲- مکي سورتونه هغه دي چې د هجرت څخه مخکې نازل شوي دي، ولو که په مدنیه کې نازل شوي وي. او مدني هغه دي چې د هجرت څخه وروسته نازل شوي دي ولو که په مکه مکرمه کې نازل شوي وي. او دا آخري قول راجح ګڼل شوی دی.

۳ – د مکي سورتونو بله نښه داده چې په (یایهاالناس) سره پیل شوي. او مدني په (یاایهاالذین آمنوا) سره.

(سورت) په لغت کې پورته والی ته وایي. ځینې وایي چې سورت د (سور المدینة) څخه اخیستل شوی؛ ځکه په قرآن کریم کې یوه کلمه د بلې کلمې او یو آیت د بل آیت په څنګ کې ځای پرځای شوي دي، همدارنګه په سور (دیوال) کې هم یوه خښته د بلې سره پیوستون لري یا دا چې لکه څنګه چې (سور) لوړوالی او جګوالي لري، همدارنګه (سورت) په هغوی لوړوالی دلالت کوي یا دا چې (آیت) په لغت کې نښې او علامې ته وایي.

د (فاتحې) سورت مکي دي او اووه آیتونه لري، د نزول له کبله پنځم سورت دی چې د المدثر سورت څخه وروسته نازل شوی دی، او په قرآن کریم کې د ترتیب له کبله لومړی سورت دی.

د ترمذی شریف حدیث دی ابو هریرهﷺ روایت کړی دی چې نبيﷺ فرمایلی: (الحمدلله) د قرآن مور ده نو ځکه ورته (أم الکتاب) هم وایي چې اووه آیتونه لري. او د صلاة سورت په نوم هم یادیږي ځکه چې په هر لمانځه کې لوستل کیږي او شفاء هم ورته وایي لکه چې رسول اللهﷺ فرمایلي(فَاتِحَةُ الکِتَاب شفاء مِنْ کُل سَقم).

ابن کثیر رحمه الله په خپل تفسیر کې وایي: د فاتحې سورت د الله تعالی په حمد، تمجید او ثنا پیل شوی، او د الله ﷻ اسماء الحسنی ورپکې ذکر شوي او په دې سورت کې د معاد (بیا راژوندي کیدو) او د جزاء د ورځې ذکر هم شوی دی.

او الله ﷻ خپلو بندګانو ته ارشاد فرمایلی چې یواځې دده څخه کمک او استعانت وغواړي او یواځې د یوه الله ﷻ عبادت وکړي او د الوهیت توحید پرځای کړي، د شرکیاتو څخه ځانونه وژغوري او د الله تعالی څخه د سمې لارې

د هدایت غوښتنه وکړي ترڅو ددې سمې لارې په تلو جنت ته داخل شي او هم په دې سورت کې الله ﷻ خپل بندګان نیکو اعمالو ته هڅولي چې نیک عملونه وکړي او بل دا چې دوی د هغو خلکو د اعمالو او لارې څخه وساتي چې هغه ګمراهان دي او غضب وربانديې شوی دی. یعنې د سمې لارې څخه بې لارې شوي او د ګمراهۍ او غضب په لارې روان دي چې هغه د الله ﷻ له رحمت او نعمت څخه وتلې لار ده نو د الله ﷻ بندګان د الله تعالی څخه د هغې لارې غوښتنه کوي چې هغه سمه لار ده او د الله ﷻ انعام وربانديې شوی دی.

په حدیث شریف کې راغلي چې امام احمد، ابو داود او ترمذي روایت کړی چې له وائل بن حجر څخه روایت دی چې کله به نبي ﷺ ﴿وَلاَ الضَّالِّينَ﴾ ولوست نو وروسته به یې "آمین" ویل او خپل مبارک غږ به یې اوږد کړ یعنې وروسته د﴿وَلاَ الضَّالِّينَ﴾ څخه "آمین" ویل سنت دي لکه چې حدیث شریف کې ذکر شوي دي.

**د کلماتو معنا:**

الرَّحْمــــنِ: ډیر ښښوونکی او مهربان.

الرَّحِيمِ: ډیر مهربان او رحم والا.

أَنعَمتَ: چې تا انعام کړی.

**د لوست میتود:** مباحثوي، ډله ییز، یو کسیز، تشریحي، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفاسیرو کتابونه، د فاتحې د سورت پوستر.

**د لوست بهیر:**

| فعالیتونه | وخت |
|---|---|
| محترم ښوونکی وروسته د سلام، احوال پوښتنې حاضري اخستلو، د ټولګي نظم او کورنۍ دندې کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي ترڅو د خپل لوست د زده کړې څخه ډاډ حاصل کړي.<br>- څوک کولای شي د تفسیر لغوي او اصطلاحي معنا ووایي؟<br>- څوک کولای شي د بعضې تفاسیرو او مفسرینو نومونه ذکر کړي؟<br>- څوک د تفسیر د علم په اهمیت خبرې کولی شي؟ | ۵ دقیقې |
| محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک په ښه ښکلي خط سره د ټولګي د تختې په مخ لیکي او زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په چوپه خولې سره مطالعه کړي او دی په دې وخت کې د لوست مشکلې کلمې په تخته لیکي او معنا کوي یې.<br>محترم ښوونکی د یوه زده کوونکی څخه غواړي چې د لوست متن په لوړ آواز سره ولولي او وروسته ښوونکی د لوست په شرحه کولو پیل کوي او لوست په سمه توګه تشریح کوي، او زده کوونکو ته لازم معلومات ورکوي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکي په دریو ډلو ویشي او دنده ورکوي چې هره ډله خپلو منځو کې د لوست د معنا او مفهوم په هکله مباحثه او مناقشه وکړي او لوست ښه تکرار کړي، | ۲۵دقیقې |

| | |
|---|---|
| ۱۰دقیقې | چې په آخر کې بیا د هرې ډلې څخه یو تن د نورو په استازیتوب د ټولګي مخې ته راغواړي ترڅو د خپلې ډلې معلومات نورو ته بیان کړي، د ښوونکی له خوا ورسره مرسته او تشویق کیږي.<br><br>**ارزونه**<br><br>ښوونکی د درسي کتاب د پوښتنو په استفادې سره له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي ترڅو د خپل لوست د زده کړی څخه مطمئن شي. |
| ۵دقیقې | **د لوست لنډیز**<br><br>- د فاتحې سورت په مکه مکرمه کې نازل شوی دی او ددې د پاره چې قرآن کریم په همدې سورت پیل شوی د فاتحې په نوم نومول شوی دی - مفسرینو ددې سورت ډیر نومونه ذکر کړي چې ځینې یې دا دي:<br>۱: الفاتحه ۲: أم الکتاب ۳: أم القرآن ۴: السبع المثانی ۵: الکنز ۶: الوافیه ۷: الکافیه ۸: سورت الدعاء او داسې نور.<br>حمد او ثنا یوازې الله ﷻ لره دي د عبادت لایق یواځې یو الله ﷻ دی کمک او مرسته یواځې د الله ﷻ څخه غوښتل کیږي، د ټولو موجوداتو رب او مالك یو الله ﷻ دی او د هدایت غوښتنه هم یواځې د الله ﷻ څخه کیږي.<br><br>**کورنۍ دنده**<br><br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د فاتحې سورت لنډه معنا په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## دریم لوست: په علم او قلم سره د وحی پیل

**مخ: ۱۰ – ۱۴**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د علق سورت د پنځو لومړنیو آیتونو په معنا او مفهوم ښه پوه شي.
- د علق سورت په شأن نزول او په رسول اکرمﷺ د وحی د پیلیدو په څرنګوالی پوه شي.
- د لوستلو او لیکلو په ارزښت د اسلام له نظره ښه وپوهیږي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د (علق) مبارک سورت مکي دی او په مکه مکرمه کې نازل شوی دی، (۱۹) آیتونه لري، د نزول له کبله لومړی سورت او په قرآن مجید کې د تلاوت له مخې ۹۶ سورت دی، حضرت عبدالله بن عباس او مجاهد رضی الله عنهما فرمایي چې د قرآن کریم څخه اول نازل شوي، ددې سورت پنځه لومړني آیتونه دي چې د جبرئیل علیه السلام په واسطه په پیغمبر علیه السلام باندې د حراء په غار کې نازل شوي دي.

حضرت محمدﷺ په څلویښت کلنۍ کې په پیغمبرۍ مبعوث شو، مخکې له دې نه چې دی په پیغمبرۍ مبعوث شي په مکه مکرمه کې د حرا غار ته چې د غره په څوکه کې موقعیت لري د عبادت لپاره تلو او هلته به یې د اللهﷻ عبادت کاوه او د اللهﷻ په مخلوقاتو او موجوداتو کې یې سوچ او فکر کاوه.

یوه ورځ رسول اللهﷺ د اللهﷻ په عبادت مشغول و چې ناڅاپه د اللهﷻ پرښته جبرئیل علیه السلام ورته راغی او د الله تعالی له لوري یې د وحی پیغام ورته راوړ او ورته یې وفرمایل (اقرأ) یعنې ولوله، پیغمبرﷺ ورته وویل: (ما أنا بقارئ) زه لوستونکی نه یم، جبرئیل علیه السلام دی په غیږ کې ټینګ ونیوه او زور یې ورکړ او ورته یې وویل (اقرأ) درې ځلې یې دا عمل تکرار کړ چې په آخر ځل یې ډیر ټینګ ونیوه او ډیر فشار یې ورکړ او بیا یې خوشې کړ او وروسته جبریل علیه السلام وویل:﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ * خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ * عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾.

حضرت محمدﷺ ددې آیتونو په اوریدو سره په خوف او ویره کې شو د پرښتې له لیدلو او د الهي وحی له عظمته یې ټول وجود په لړزه او ویره کې شو چې وروسته خپل کور ته راغی او خپلې بي بي حضرت خدیجې رضی الله عنها ته یې وویل: (زملوني، زملوني) یعنې ما وپوښئ او پټ مې کړئ، حضرت خدیجې رضی الله عنها هغه پټ کړ ترڅو چې خوف او ویره ورڅخه لاړه او حضرت خدیجې رضی الله عنها ته یې کیسه وکړه، هغې ورته وویل قسم په الله ﷻ، الله تعالی به تا تر ابده پورې نه رسوا کوي ځکه چې ته صله رحمي ټینګوې او د میلمه پالنه کوې او په سختو حالاتو کې حق پالونکی یې. او بیا یې نبي علیه السلام د ځان سره ورقه بن نوفل ته چې د حضرت بی بی خدیجې رضی الله عنها د تره زوی او په انجیل ښه پوه او عالم و یووړ، خدیجې رضی الله عنها ورقه بن نوفل ته وویل: له خپل وراره څخه هغه څه واوره چې لیدلي یې دي، ورقه بن نوفل د نبيﷺ څخه د خپل حال لیدنه وپوښتله، نبيﷺ دا کیسه ورته بیان کړه، ورقه ورته وویل: دا همغه پرښته ده چې حضرت موسی علیه السلام ته راغلې وه او بیا یې ورته وویل زه زیری درکوم چې ته د اللهﷻ پیغمبر او رسول یې او کاش چې زه هغه وخت وای او طاقت او توان را سره وی چې ستا مرسته او کمک مې کړی وای کله چې ستا قوم به تا له مکې څخه شړي. پیغمبرﷺ ورته وویل چې آیا زما قوم به ما شړي؟ هغه ورته وویل: هو، ستا قوم به تا شړي، هر پیغمبر چې رالیږل شوی دی قوم یې ورسره دښمني کړې ده که چیرې هغه وخت زه وم هرومرو به ستا مرسته وکړم چې بیا څه موده وروسته ورقه بن نوفل وفات شو.

**د کلماتو معنا:**

علق: د وينې ټوټه.

فحوی: د خبرو مفهوم او مضمون.

**د لوست میتود:** توضیحي، هڅونه، یو کسیز، ډله ییز، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسير شريف کتابونه، د کلماتو پوستر.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوا ل پوښتنې، د ټولګي نظم او کورنۍ دندې کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>- څوک کولای شي د فاتحې سورت معنا او ترجمه په لنډه توګه بیان کړي؟<br>- څوک د هدایت معنا او مفهوم ویلی شي؟ |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک په ښه ښکلي خط په تخته لیکي او د نوي لوست مبارک آیتونه په ښه آواز او د تجوید په مراعاتولو سره تلاوت کوي او بیا د یوه زده کوونکی څخه غواړي چې د لوست لومړي پنځه آیتونه په سمه توګه تلاوت کړي او په دې وخت کې ښوونکی مشکل او سخت کلمات د ټولګي په تخته لیکي او معنا کوي یې او همدارنګه د مبارکو آیتونو په معنا او تفسیر پیل کوي او زده کوونکو ته لازم معلومات ورکوي او په ښه توګه سره لوست تشریح کوي او وروسته له یوه زده کوونکي څخه غواړي چې د لوست متن ولولي او له بل زده کوونکي څخه غواړي چې د لوست د متن په عام مفهوم رڼا واچوي چې د ښوونکي له خوا ورسره مرسته او کمک کیږي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکي په دوو ډلو ویشي او ورڅخه غواړي چې لومړۍ ډله د لوست او مفهوم په هکله او دویمه ډله د علم، پوهې او د لیک او لوست د ارزښت په هکله خپلو کې مباحثه او خبرې اترې وکړي چې بیا وروسته د هرې ډلې څخه یو تن د نورو په استازیتوب د ټولګي مخې ته راځي او د خپل بحث په هکله نورو ته خپل معلومات بیانوي او د ښوونکي له خوا ورسره مرسته او تشویق کیږي. وروسته ددې څخه ښوونکی یو ځل بیا د لوست مهمو ټکو ته اشاره کوي او توضیحات ورکوي او د انسان د پیدایښت او د علم او پوهې، لیکلو او لوستلو په ارزښت رڼا اچوي.<br><br>**ارزونه**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب له پوښتنو څخه په استفادې سره زده کوونکي ارزوي او پوښتنې ورڅخه کوي. |
| ۱۰دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>- د لوست دغه مبارک آیتونه په نبيﷺ باندې د وحی پیل دی چې ددې آیتونو په نازلیدو سره پیغمبرﷺ د نبوت په مقام مشرف شوه او د قرآن کریم نزول په همدې آیتونو سره پیل شو.<br>- دا سورت په مکه مکرمه کې نازل او د قلم په واسطه د علم او پوهې پیل په دې آیتونو کې شوی چې د لوستلو او لیکلو، پوهې او علم په ارزښت دلالت کوي. - او همدارنګه الله ﷻ د انسان پیدایښت ته اشاره کړې چې څرنګه او چا پیدا کړی دی.<br><br>**کورنۍ دنده**<br>ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي چې په خپلو کتابچو کې د علم، پوهې او لیک لوست په هکله معلومات ولیکي. |

## څلورم لوست: د اخلاص سورت

**مخ: ۱۵– ۱۷**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- شرکي عبادتونه، اعمال او کړه وړه له توحید څخه جدا او بیل کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د اخلاص مبارک سورت مکي دی او څلور آیتونه لري، ترتیب یې په قرآن مجید کې (۱۱۲) او د نزول له مخې (۲۲) سورت دی چې د (الناس) سورت څخه وروسته نازل شوی دی، ددې مبارک سورت د نزول سبب په حدیث شریف کې داسې ذکر شوی دی: مشرکانو نبي ﷺ ته وویل چې ته موږ ته د خپل رب نسب بیان کړه نو الله تعالی د دوی ددې سوال په ځواب کې دا سورت نازل کړ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ * اللَّهُ الصَّمَدُ * لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ * وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ﴾ یعني الله تعالی یو دی هیڅ سیال، مثل او شریک نه لري، د هیچا څخه نه دی پیدا شوی او نه دده څخه څوک پیدا شوي دي او نه کوم سیال او مثل لري.

ددې مبارک سورت ډیر فضایل دي چې په احادیثو کې ذکر شوي دي، پیغمبرﷺ فرمایلي دي چا چې دا سورت ولوست لکه چې د قرآن کریم دریمه برخه یې لوستلې وي، په یوه بل حدیث شریف کې راغلي یو کس پیغمبرﷺ ته راغی او هغه ته یې وویل زه له دغه سورت سره ډیره مینه او محبت لرم، نبي کریمﷺ ورته وفرمایل: ستا مینه به ددې سورت سره تا جنت ته داخلوي.

همدارنګه په یوه بل حدیث شریف کې نبي کریمﷺ فرمایلي آیا تاسو نشئ کولئ چې دغه سورت درې ځله په شپه کې ولولئ ځکه چې دا د قرآن کریم د ثلث(دریمې) برخې سره برابر دی او داسې نور ډیر احادیث دي چې ددې مبارک سورت ډیر فضایل یې بیان کړي چې دلته په همدومره سره اکتفا کوو.

هو! شریک، په درې ډوله وي: اعلی شریک یعني ترده لوړ چې پلار دی ، ادنی شریک یعني ترده ښکته چې زوی دی او مساوي شریک یعنې دده سره برابر دی . نو په سورت کې د دریو واړو شریکانو نفی راغله په دې مبارک سورت کې الله تعالی د توحید بیان او د مشرکانو، یهودو او نصاراوو د باطلو عقیدو تردید کړی دی ځکه یهودانو به عزیر ؑ او نصاراوو به عیسی ؑ د الله تعالی زامن ګڼل او مشرکانو به بیا ملائکې د الله لوڼې ګڼلې.. نعوذبالله

﴿**وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ**﴾ نشته الله تعالی لره هیڅ شبیه، مثل او ساری.

﴿**لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ**﴾ هیڅ شی دده مثل او ساری نه دی.

د «الصَّمَدُ» کلمه ډیرې معناوې لري چې امام الطبراني داسې رانقل کړي دي زموږ الله ﷻ هغه لوی ذات دی چې هغه ته هر راز اړتیاوې او احتیاجات وړاندې کیږي هر شی هغه ته اړ او احتیاج دی او دده څخه هر ډول مدد او مرسته غوښتل کیږي او د ټولې لويي او مشرتیا صفت لرونکی دی هغه نه څه خوري او نه څه څښي او نه چاته احتیاج لري او د خپلو مخلوقاتو له فاني کیدو وروسته هم پاتې او باقي دی.

**د کلماتو معنا:**

الاحد: یکي یو

لَمْ يَلِدْ: له ده نه هیڅوک نه دی پیدا شوی (زوی، لور) نلري.

وَلَمْ يُولَدْ: او نه دی له هیچا څخه پیدا شوی (مور، پلار) نلري.

الله ﷻ نه د چا پلار دی او نه د چا زوی دی، واحد او لا شریک ذات دی.

**د لوست میتود:** تشریحي، یو کسیز، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسیر کتابونه، پوستر

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوا ل پوښتنې، ټولګي له نظم، حاضرۍ اخستلو او کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>- څوك كولای شي د علق سورت معنا په لنډه توګه ووايي؟<br>- څوك كولای شي د تیر لوست د کلماتو معنا ووايي؟ |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیك په ښه ښکلي او غټ خط سره په تخته لیکي او وروسته په لوړ آواز او د تجوید د قواعدو په رعایت کولو سره د اخلاص سورت آیتونه تلاوت کوي او وروسته ددې څخه د نوموړي سورت په معنا او ترجمه او تفسیر پیل کوي او همدارنګه د لوست مشکل او سخت کلمات په تخته لیکي او معنا کوي یې او ددې سورت د شأن نزول په هکله او همدارنګه د الله ﷻ د وحدانیت په هکله زده کوونکو ته پوره او لازم معلومات وړاندې کوي او ورځخه غواړي چې په دې هکله خپلې پوښتنې مطرح کړي او دی ددوی پوښتنو ته په سمه توګه ځوابونه وایي.<br>محترم ښوونکی د یوه تن زده کوونکی څخه غواړي چې د سورت اخلاص د آیتونو معنا په لنډه توګه بیان کړي او د یوه بل زده کوونکی څخه غواړي چې ددې سورت تفسیر په لنډه توګه بیان کړي چې د ښوونکي له خوا ورسره پوره مرسته او کومك کیږي او دوی تشویق کوي.<br><br>**ارزونه**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د پوښتنو نه په استفادې سره د زده کوونکو څخه پوښتنې کوي او هغوی ارزوي ترڅو د خپل لوست د زده کړې څخه ډاډمن شي. |
| ۱۰دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>- د اسلام د سپیځلی دین څخه وړاندې په نړۍ کې او په ځانګړې توګه په جزیرة العرب کې خلکو د بتانو، لمر، سپوږمۍ، ستورو، کاڼو او داسې نورو شیانو عبادت کاوه او دا شیان یې په خدایي نیولی وه او د دوی څخه یې د مرستې، ګټې او ضرر طمعه کوله.<br>- نو کله چې پیغمبرﷺ په پیغمبرۍ مبعوث شو خلك یې د یوه الله ﷻ عبادت ته راوبلل او همدارنګه یې خلکو ته د بتانو د عبادت بطلان او دا چې دوی هیڅ نشي کولی یعني نه چاته ګټه رسولی شي او نه تاوان دوی پخپله محتاج مخلوق دی.<br>- او ټول موجودات ده ته محتاج دي او ده پیدا کړي دي او هر څه چې وغواړي هغه کیږي<br>- پیغمبرﷺ دغې لارې ته دعوت پیل کړ او په دې لاره کې یې ډیرې ستونزې او مشکلات وګالل.<br>- د نزول له کبله (۳) سورت دی. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>ښوونکی د درسي کتاب له مخې زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. |

# پنځم لوست: بوازې الله ﷻ په هر څه واکمن او پیدا کوونکی دی

**مخ: ۱۸ – ۲۲**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د الفرقان سورت ۱ – ۳ مبارکو آیتونو په مفهوم ښه پوه شي.
- د الفرقان سورت هغه آیتونه چې د الله ﷻ د ذات او صفاتو د توحید دلایل یې بیان کړي وپیژني.
- په عقلي او منطقي دلایلو سره د الله ﷻ په یووالي او وحدانیت پوه او نورو ته یې بیان کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د (الفرقان) سورت مکي دی او (۷۷) آیتونه لري ترتیب یې د تلاوت له مخې (۲۵) او د نزول لـه مخې (۴۲) دی او د سورت (یس) څخه وروسته نازل شوی دی.

الله تعالی په دې سورت کې د توحید بیان کړی ځکه توحید تر ټولو اصولو مهم او غوره اصل او رکن دی او بیـایې د نبوت او رسالت بیان کړی ځکه رسالت د الله او رسول ترمنځ واسطه دی، او وروسته یې د آخرت او معاد بیـان کـړی چې د ټولو خاتمه ده. د «تَبَارَكَ» اصل د **البرکة** څخه اخیستل شوی چې زیاتوالي او نمو ته ویل کیږي که هغـه حسي وي او که عقلي، او همدارنګـه «تَبَارَكَ» د برکـت پـر معنـا دی چې د هـر نیـک شـي او عمـل زیـاتوالي تـه وایـي. او همدارنګه «تَبَارَكَ» او تقدس په عربي ژبه کې په یوه معنا دي چې عظمت او لویي ته وایي او همدارنګـه «تَبَـــارَكَ» د عطاء او ورکړې په معنا هم راځي یعنې ډیره او زیاته ورکړه.

د «الْفُرْقَانَ» څخه مطلب قرآن کریم دی او فرقان ځکه ورته وایي چې دا سورت د حق او باطل په منځ کې فرق راولي یعني حق د باطل څخه جلا کوي،«عَبْدِهِ» څخه مطلب محمد ﷺ دی، «لِيَكُونَ لِلْعَالَمِينَ نَذِيرًا» په دې آیت کې په محمد ﷺ باندې د قرآن کریم د نزول لامل بیان شوی چې هغه انذار دی او مطلب د «نَذِيرًا» څخه محمد ﷺ دی «لِلْعَالَمِينَ» د (عالم) جمع ده، او (عالم) د الله تعالی څخه پرته پر ټولو موجوداتو دلالت کوي، چې ملایکې هم د دغو موجوداتو یوه برخه ده. او اجماع د امت په دې ده چې محمد ﷺ ملایکو ته نه دی استول شوی، نو مراد د (العالمین) څخه دلته یواځې انسانان او پیریان دي، یعني نبی ﷺ دې دواړو ډلو ته رالیږل شوی دی. او تر قیامته پورې د انسانانو او پیریانو لپاره رسول دی چې نور نبیان داسې نه دي.

الله تعالی وروسته ددې څخه خپل ځان ته څلور صفتونه بیان کړی چې په لاندې توګه دي:

۱- «لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ» یعنې الله مالك او خاوند د اسمانونو او ځمکو او ټولو موجوداتو دی.

۲-«وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا» الله ﷻ ولد نه دی نیولی او نه ورته ضرورت لري چې په دې کـې پـه نـصارا او یهـودو بانـدې رد دی چې هغوې داسې زعم کوي.

۳-«وَلَمْ يَكُن لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ» الله تعالی په خپل ملك کې هیڅ شریك نلري هغه یو احد ذات دی، پـه دې کـې په مشرکینو او بت پرستانو رد دی چې د غیر الله عبادت کوي.

۴-«وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ» الله ﷻ ټول موجودات پیدا کړي او په خپل حکمت سره یـې د هـر شـي تقـدیر او انـدازه تعین کړې لکه روزي، اجل او داسې نور د هـر شـي کـړه وړه او د هغـه بقـاء او فنـاء. د مـشرکانو حال بیـانوي چـې دوې د الله ﷻ څخه پرته نور آلهه او خدایان ونیول، هغوی هیڅ شی نشي پیدا کولی او هغوی پخپله پیدا شـوي یعنـې همدغـه د

مشرکینو خدایان الله ﷻ پیدا کړي دي لکه عزیر او مسیح علیهما السلام او ملائکه او نور د دوی معبودان او همدارنګه د دوی دغه آلهه ناتوانه مخلوق دی هغه خپل خالق ته محتاج دي دوی هیڅ قدرت او توان ددې نلري چې خپلو ځانو ته ضرر یا ګټه ورسوي او همدارنګه دوی د مړه کیدو او ژوندي کیدو قدرت او توان نلري، نه د خپل ځان او نه د نورو شیانو یعني چې ژوندی مړ کړي او یا مړ ژوندی کړي. ددې کارونو مالک یواځې او یواځې یو الله ﷻ دی او بس.

**د کلماتو معنا**

وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا: او ده هیڅوک د زوی په توګه نه دی نیولی (زوی نلري).

وَلَمْ يَكُن لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ: او نشته هیڅ شریک دده په ملک او پادشاهۍ کې.

**د لوست میتود:** توضیحي، یوکسیز، ډله ییز، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسیر شریف کتابونه.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنی دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>- څوک کولای شي د تیر لوست د آیتونو لنډه معنا وکړي؟<br>- څوک کولای شي د تیر لوست ګټې او مفهوم بیان کړي؟<br>محترم ښوونکی د یوه تن زده کوونکی څخه غواړي چې د سورت الفرقان ۱ ـ ۳ مبارک آیتونه په سمه توګه تلاوت کړي<br>محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک او همدارنګه مشکل او سخت کلمات په تخته لیکي او لوست تشریح کوي او معنا او مفهوم یې څنګه چې لازم دی بیانوي او د کلماتو د معنا په هکله پوره او لازم توضیحات ورکوي ترڅو زده کوونکي وربانديې ښه وپوهیږي.<br>وروسته د آیتونو د معنا څخه د هغو په تفسیر پیل کوي او په لنډه توګه یې تفسیر بیانوي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د زده کوونکو څخه غواړي چې د نوي لوست ارتباط د تیر لوست سره بیان کړي چې دی ورسره مرسته او کومک کوي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکي په دوه ډلو ویشي او ورڅخه غواړي چې په خپلو کتابچو کې د لوست د کلماتو معنا ولیکي او وروسته د هرې ډلې څخه یو تن د ټولګي مخې ته راځي او خپل لیکلی معلومات نورو ته بیانوي.<br>محترم ښوونکی د الله ﷻ د یووالي او وحدانیت لپاره دلایل او مثالونه راوړي او له زده کوونکو څخه غواړي چې په دې هکله خپل معلومات او نظریات څرګند کړي چې کومک او مرسته ورسره کیږي او ددوی پوښتنو ته ځواب ویل کیږي.<br><br>**ارزونه**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د پوښتنو نه په استفادې سره زده کوونکي ارزوي او پوښتنې ورڅخه کوي، که چیرته زده کوونکي نه پوهیدل ښوونکی ورسره مرسته کوي او سم ځوابونه ورته ښیي. |

| | |
|---|---|
| ۱۰دقیقې<br><br><br><br><br><br><br>۵دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>- د الفرقان سورت مکي دی چې (۷۷) آیتونه لري او فرقان د قرآن کریم د نومونو څخه یو نوم دی.<br>- په دې آیتونو کې د الله ﷻ د وحدانیت او یووالي دلایل بیان شوي، یعني الله ﷻ یو واحد ذات دی په خپل ملك او پادشاهی کې هیڅ شریك او سیال نلري، هرڅه دده په قدرت کې دي او دی د ټولو موجوداتو څښتن او مالك دی او د مشرکانو باطل معبودان د هیڅ شي قدرت او توان نلري نه کوم شي ته ګټه رسولی شي او نه تاوان.<br>- برکت له زیادت څخه عبارت دی که هغه زیادت معنوي وي او که حسي.<br><br>**کورنی دنده**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب له لارښوونې سره سم کورنی دنده ورکوي. |

## شپږم لوست:

## سرلیک: د الله تعالی غوره نومونه

**مخ: ۲۳**

**وخت: دري درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د الحشر سورت درى آیتونه په سمه توګه تلاوت کړای شي.
- د مبارکو آیتونو او د الله ﷻ د نومونو په اجمالي مفهوم پوه شي.
- د الله ﷻ د غوره نومونو اغیزې په ژوندانه کې او د هغو د زده کولو په اجر او ثواب چې جنت ته د داخلیدو سبب ګرځي وپوهیږي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

الله سبحانه و تعالی د الحشر سورت په دې آخرنیو آیتونو کې د خپل قدرت، عظمت، ربوبیت او لویي څخه خبر ورکوي.

«هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ» په دې جمله کې د توحید بیان او د شرک دفعه کول دي یعنې ټول مخلوق باید د الله ﷻ توحید قبول کړي او په هغه اقرار وکړی او د شرک څخه ځانونه وژغوري

«عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ» الله تعالی په ټولو هغو شیانو چې د حس څخه غائب او پټ دي عالم او پوه دی.

د غیب کلمه د الشهادة کلمې څخه مقدمه او مخکې ذکر شوې ده، ددې لپاره چې په وجود کې غیب مقدم دی د حاضر څخه.

«هُوَ اللَّهُ الَّذِي.....» دا آیت چې د دوهم ځل لپاره راغلی دا د تأکید لپاره دی څو خلک د الله تعالی وحدانیت قبول کړي او د الله تعالی په یووالي باور او یقین وکړي او د شرک څخه ځان وساتي، نو ځکه دغه آیت الله تعالی تکرار ذکر کړی دی.

«الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ» الله تعالی پاک او منزه دی د ټولو عیبونو او نواقصو څخه، ویل شوي چې الله هغه ذات دی چې خپل مخلوق ته یې د ظلم څخه سلامتي ورکړې یعنې ظلم ورباندې نه کوي او ویل شوي چې سلامتیا ورکوونکی دی خپلو بندګانو ته په جنت کې.

«الْمُؤْمِنُ» هغه ذات دی چې خپلو نیکو بندګانو ته یې د خپل عذاب څخه، امن ورکړی او یا هغه ذات دی چې د رسولانو او نبیانو په پیغمبری تصدیق کوونکی دی د معجزاتو له لارې.

«الْمُهَيْمِنُ» هغه ذات دی چې د خپلو بندګانو په ټولو عملونو حاضر، خبر او ددوی څارونکی دی.

«الْعَزِيزُ» هغه ذات دي چې قوي او غالب دی او هیڅ نظیر نلري.

«الْمُتَكَبِّرُ» هغه ذات چې د ډیرې لویئ خاوند دی او دی د ټولو نواقصو او هغو شیانو څخه چې دده د شان سره لایق نه دي، اوچت دی، کبر د الله تعالی په صفاتو کې د مدح او د مخلوق په صفاتو کې د ذم معنی ورکوی.[1]

پورتني آیتونه د حشر سورت وروستني آیتونه دي چې ددغو مبارکو آیتونو په فضیلت کې ډیر احادیث ذکر شوي چې ځینې یې دلته ذکر کوو (د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چې نبي علیه السلام یوه سړي ته امر وکړ چې کله

[1] هغه روایت چې د الله تعالی د نهه نوي نومونو یادونه پکې شوي ده، د الله تعالی غوره نومونه (الاسماء الحسنى) په دغه شمیر کې منحصر نه دي.

د خپل خوب ځای ته ځي او ويده کيږي نو د حشر سورت وروستني آيتونه لوله او ورته يې وويل که چيرته په دغه شپه کې مړ شوې نو ستا مرګ د شهادت مرګ دی.
په يو بل حديث شريف کې ابو امامه روايت کړی وايي چې نبي عليه السلام فرمايلي چا چې "اعوذ بالله من الشيطان الرجيم" درې ځله ولوست او وروسته يې د حشر سورت آخرني آيتونه ولوستل الله تعالی ورته اويا ملکې راليږي چې دده څخه انسي او جني شيطانان شړي که چيرته شپه وي تر سبا پورې او که چيرته ورځ وي تر ماښام پورې.
او همدارنګه يو بل حديث شريف کې چې معقل بن يسار روايت کړی پيغمبرﷺ فرمايلي دي: چا چې د سبا په وخت کې درې ځله "اعوذ بالله من الشيطان الرجيم" وويلی او بيايې د حشر سورت آخرني درې آيتونه ولوستل الله تعالی اويا زره ملکې مکلفې کوي چې په ده درود ووايي ترڅو چې ماښام شي او که چيرته په دغه ورځ مړ شي نو دی شهيد مړ شو يعنې مرګ يې د شهادت دی او که چا د ماښام او شپې په وخت وويل هغه به هم همدارنګه وي.
او په يوه بل حديث شريف کې ابو امامهرضي الله عنه روايت کړی فرمايي چې پيغمبرﷺ فرمايلي چا چې د حشر سورت وروستني آيتونه ولوستل په شپه کې او يا ورځ کې او بيا مړ شو په همدغه شپه او ورځ کې الله تعالی ده ته جنت واجب کړی دی.

**د کلماتو معنا**

عالم: پوه.

الرحمن: ډير رحم کوونکی او ښښونکی.

رحيم: ډير رحم کوونکی.

السلام: پاك او منزه د ټولو نواقصو او عيبونو څخه.

العزيز: غالب او د قدرت خاوند.

الحکيم: په خپل علم او کارونو کې د حکمت څښتن.

**د لوست ميتود:** مباحثوي، ډله ييز، توضيحي.

**د لوست مرستندويه توکي:** درسي کتاب، د تفسير کتابونه، د اسماء الحسنی پوستر.

**د لوست بهير**

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵ دقيقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنی دندې له کتنې وروسته د تير لوست ارزونه کوي او بيا د نوي لوست ارتباط د تير لوست سره بيانوي او په دې هکله د زده کوونکو څخه پوښتنې کوي.<br>محترم ښوونکی د اسماء الحسنی پوستر د موجوديت په صورت کې زده کوونکو ته مخامخ ځوړندوي او شرح کوي يې. |
| ۲۵دقيقې | محترم ښوونکی زده کوونکي په دريو ډلو ويشي او دنده ورکوي چې هره ډله د لوست يو يو آيت په خپلو کې په چوپتيا سره په سمه توګه تلاوت کړي او بيا وروسته د يوه تکړه زده کوونکي څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او درې واړه آيتونه د تجويد په مراعاتولو سره په ښه آواز تلاوت کړي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکي په دوه ډلو ويشي او ورڅخه غواړي چې اوله ډله د اللهﷻ (۱۰) نومونه او دويمه ډله (۲۰) نومونه وليکي، مرسته او تشويق صورت نيسي.<br>محترم ښوونکی د اسماء الحسنی فوايد او ګټې او د هغو اغيزې زده کوونکو ته په لنډه توګه بيانوي. |

| | |
|---|---|
| | **ارزونه**<br>محترم ښوونکی د خپل ډاډ او اطمینان په خاطر د درسي کتاب د پوښتنو نه په استفادې سره د زده کوونکو څخه پوښتنې کوي که چیرته کوم زده کوونکی نه پوهیږي ورسره مرسته کوي او تشویقوي یې. |
| ۱۰دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>- د حشر مبارک سورت د قرآن کریم په ۲۸ سپاره کې دی.<br>- د نزول له کبله (۱۰۱) سورت، د تلاوت له مخې په قرآن مجید کې (۵۹) سورت دی چې په مدینه منوره کې نازل شوی دی.<br>- په دې مبارکو آیتونو کې د الله ﷻ غوره نومونه (اسماء الحسنی) ذکر شوي چې د الله ﷻ په علم، قدرت، حکمت، رحم، پاکي او دا چې د ټولو مخلوقاتو خالق، مدبر، ساتونکی، پالونکی، ښونکی، روزي ورکونکی او مالك دی، دلالت کوي.<br>- د حشر سورت دغه وروستني درې آیتونه ډیر اجر او ثواب لري، هغه کس چې دغه درې آیتونه سهار او ماښام لولي که چیرته په دې ورځ او یا شپه کې مړ شي مرګ یې د شهادت درجه لري، نو باید د الله ﷻ اسماء الحسنی یاد او هر وخت یې تلاوت کړو. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب له مخې زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. |

## اووم لوست: انسان عبث او بی فایدې نه دی پیدا شوی

**مخ: ۲۸ – ۳۱**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- مبارک آیتونه په سمه توګه تلاوت کړی شي.
- د مبارکو آیتونو په معنا پوه شي.
- د مبارکو آیتونو مختصر تفسیر وکړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

الله تعالی د (المؤمنون) سورت په آخرنیو آیتونو کې فرمايي«أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا» دلته همزه د توبیخ او تقریر لپاره ده، د کفارو او مشرکینو هغه باطله عقیده ردوي چې دوی یې لري او داسې فکر کوي چې انسان هسې عبث او چټي پیدا شوی په دې معنا چې د مرګ څخه وروسته نه ژوندی کیږي. الله تعالی ددوی دغه زعم او باطله عقیده د توبیخ او تقریر په اسلوبو رد کوي چې داسې نده او انسان عبث نه دی پیدا شوی او د مرګ څخه وروسته به ژوندی کیږي او الله ته به رجوع کوي او له ده سره به د ښو او بدو اعمالو حساب کیږي.

د(ف) حرف دلته د عطف لپاره دی په محذوف باندې.

په دې معنا: ألم تعلموا شيئاً فحسبتم. آیا تاسو نه پوهیږئ په کوم شي چې تاسو ګمان وکړ.(عبثاً) دغه کلمه منصوبه ده په حال سره یعنې حال واقع شوی د ضمیر څخه چې په (خلقنا) کې دی، په معنا د(عابثین) او یا منصوبه ده په مفعول لاجله سره په معنا د علت یعنې (للعبث) په معنا د (للعبث)، «وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ» دا جمله معطوفه ده په «أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا» باندې. عبث: بی فایدې، بې ګټې، خوشې، د آیت معنا داسې راځي آیا تاسو ګمان کوئ چې ما تاسو بی فایدې، بی ګټې، خوشې، عبث او مهمل پیدا کړي یاستئ او دا چې تاسو بیا ما ته رجوع نه کوئ وروسته د مرګ څخه چې ستاسو د اعمالو جزا درکړم له دې څخه وروسته الله‌ﷻ د خپل ځان پاکي بیانوي او فرمايي«فَتَعَالَى اللَّهُ» یعنې پاك او منزه دی د اولادونو او شریکانو او ددې څخه چې کوم شی عبث او بی فایدې پیدا کړي، ددې ټولو شیانو څخه الله سبحانه و تعالی پاک او منزه دی بیا یې خپل ذات په (الملک) او په (الحق) سره ستایلی او (الملک) مالک او څیښتن د هرشي او (الحق) یعني الله رښتینی او حقیقي واکمن دی، هر څه له ده څخه دي او هر څه ده ته ستنیدونکي دي.

وروسته ددې نه الله تعالی د هغو کسانو حال بیانوي چې د غیر الله عبادت کوي او یا یې د الله تعالی سره شریک بولي چې ددوې دا عمل هیڅ حجت او دلیل نلري. برهان: واضح حجت او واضح دلیل ته وايي او دا جمله شرطیه ده او د شرط ځواب د الله‌ﷻ دا قول دی «فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِندَ رَبِّهِ» ددوی ددې بد عمل جزاء او حساب الله تعالی سره دی هغه به ورسره حساب کوي او جزاء به ورکوي، که د کامیابۍ او نجات لار پیدا نه کړي دوی همیش په تاوان او خسران کې دي.

ددې آیتونو په پای کې الله تعالی خپل نبي محمدﷺ ته امر کوي په مغفرت او رحمت غوښتنې سره د خپل رب څخه؛ دا د پیغمبر علیه السلام د تعلیم لپاره دی او ددې لپاره ترڅو دده امت په ده پسې د اقتدا په خاطر د الله ﷻ څخه د استغفار د او رحمت غوښتنه وکړي او ځینې وايي چې الله تعالی نبي علیه السلام ته امر وکړ چې د خپل امت لپاره مغفرت او رحمت وغواړي.

ددې ذکر شوو مبارکو آیتونو د فضیلت په هکله د ابن مسعودؓ څخه روایت دی چې ده دا آیتونه د یوه مریض په غوږ کې ولوستل او هغه ورسره روغ شو، پیغمبرﷺ دده څخه وپوښتل چې څه دې ولوستل د هغه په غوږ کې، ده خبر ورکړ

په دې سره، نو نبي كريمﷺ وويل: قسم په هغه ذات چې زما نفس يې په لاس كې دى كه چيرته كوم كس په باور او يقين سره دا آيتونه په غره باندې ولولي هغه غر به زايل شي.

**د كلماتو معنا:**

**د لوست ميتود:** په چوپتيا مطالعه، سوال او ځواب، مباحثه، توضيحي او تشريحي.

**د لوست مرستندويه توكي:** درسي كتاب، د تفسير شريف كتابونه.

**د لوست بهير**

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵ دقيقې | محترم ښوونكى د سلام، احوال پوښتنې او كورنۍ دندې كتنې څخه وروسته د تير لوست ارزونه كوي:<br>- څوك كولاى شي د تير لوست د مباركو آيتونو ترجمه او تفسير بيان كړي؟<br>محترم ښوونكى د نوي لوست سرليك په غټ او ښكلي خط سره په تخته ليكي او وروسته بيا مبارك آيتونه د تجويد د قواعدو په مراعاتولو سره په لوړ آواز تلاوت كوي. |
| ۲۵دقيقې | محترم ښوونكى د دوو تنو زده كوونكو څخه غواړي چې لوست په چوپتيا سره مطالعه كړي او ښوونكى په دې وخت كې د لوست مشكلې كلمې په تخته ليكي او بيا يې معنا كوي او همدارنګه د لوست مهمو ټكو او موضوعاتو ته اشاره كوي او هغه ښه تشريح كوي او بيا د دوو تنو زده كوونكو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او لوست شرح كړي.<br>محترم ښوونكى زده كوونكي په دوه ډلو ويشي او دنده وركوي چې هره ډله د لوست يوه برخه په خپلو منځو كې ولولي او په هكله يې مباحثه او خبرې اترې وكړي.<br>وروسته د هرې ډلې څخه يو تن د ټولګي مخې ته راغواړي چې د لوست په هكله خپل معلومات بيان كړي چې د ښوونكي له خوا ورسره پوره كومك او مرسته كيږي او هغوى تشويقوي.<br>**ارزونه**<br>- څوك كولاى شي هغه دعا چې د لوست په متن كې ذكر شوې ده له ياده ووايي؟<br>- څوك ويلاى شي چې انسان د څه لپاره پيدا شوى دى؟<br>- څوك كولاى شي چې د لوست له فوايدو څخه يوه فايده او ګټه بيان كړي؟ |
| ۱۰دقيقې | **د لوست لنډيز**<br>- دا مبارك آيتونه د مؤمنانو بريالیتوب او نيكمرغي بيانوي او ورباندې تأكيد كوي چې د تل لپاره د بريالیتوب او كاميابۍ لاره غوره كړي.<br>- ښښنه او معافي يوازې د يوه اللهﷻ څخه غوښتل كيږي، مغفرت او رحم بايد هر وخت د اللهﷻ څخه وغواړو.<br>- اللهﷻ انسان هسې عبث نه دى پيدا كړى بلكه انسان د يو ستر هدف لپاره پيدا شوى چې د هغه په هكله ورڅخه پوښتنه كيږي چې هغه د اللهﷻ عبادت، توحيد... او داسې نور دي. |
| ۵دقيقې | - هغه كسان چې د اللهﷻ سره شريك نيسي هغوى ته به سخت عذاب او جزا وركول كيږي.<br>**كورنۍ دنده**<br>محترم ښوونكى د درسي كتاب څخه زده كوونكو ته كورنۍ دنده وركوي. |

# اتم لوست: سرلیک: انسان د الهي نعمتونو په سیوری کې

**مخ: ۳۲ – ۳۴**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست د آیتونو په معنا او مفهوم ښه پوه شي.
- د الله تعالی د قدرت نښې د لمر او سپوږمۍ په پیدايښت کې او د هغو ګټې وپيژني.
- د شپې او ورځې د بدلیدو او رابدلیدو ګټې درک کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

الله سبحانه و تعالی د ابراهیم سورت په دغو آیتونو کې د خپل قدرت، عظمت، خلقت او خپلو بندګانو ته د بی حسابه نعمتونو ورکړه بیانوي او فرمایي چې ستاسو رب الله ﷻ هغه ذات دی چې په خپل قدرت سره یې آسمانونه او ځمکې پیدا کړي او دا پیدايښت یو بی مثاله پیدايښت دی او همدارنګه ټول پاسني او لانديني شیان یې د انسانانو د نفعې لپاره پیدا کړي دي، همدارنګه الله تعالی اوبه پیدا کړې چې د ټولو شیانو د حیات او ژوند وسیله ده(وَ أَنزَلَ مِــــنَ الْــــسَّمَاء مَاء) (السماء) (علو) ته وایي او دلته ترې وريځې مراد دي یعنې اوبه یې د پاسه نـازل کـړې چـې پـه دې کـې وريځـې داخلیږي د هغو په وینا چې وایي ابتداء د باران له وريځو څخه ده او همدارنګه نور اسباب چې وريځـې یـو طـرف او بل طرف ته به حرکت راولي لکه باد، د «ماء» کلمه دلته نکره ده مطلب دا چې یوه نوعه د انواعـو د اوبـو څخـه چـې هغه د باران اوبه دي. «فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقاً لَّكُمْ» الله تعالی ددې اوبو په واسطه بني آدم تـه هـر ډول او رنـګ رنګ میوې پیدا کړې چې په دې سره ژوند وکړي او خوند ورڅخـه واخلـي. او کلمـه د «مِـــن» د بیـان لپـاره ده او ځینې وایي چې د تبعیض لپاره ده ځکه چې ځینې مېوې د بنـي آدم لپـاره روزي ده او ځینـې روزي نـه ده یعنـې نـه د هغه څخه نفعه اخلـي او نـه یـې خـوري او راجـح اول قـول دی. همدارنګـه لـوی رب د انـسانانو د ګټـې لپـاره د اوبـو بحرونه، نهرونه او سیندونه پیدا کړي او هغه یې ورته مسخر او تابع ګرځولي چې کار ترې واخلي لکه په کـښتیو کـې سوريدل چې د سفر وسیله ده چې کوم ځای غواړي د الله تعالی په امر او مشیت سره هلتـه سـفرکوي او همداسـې پـه نورو شیانو کې لکه ښښل او زراعت او د اوبو په واسطه سره خړوبول. او لوی رب العزت د انـسانانو د معـاش او ژونـد لپاره لمر او سپوږمۍ پیدا کړل چې د نور څخه یې ګټه واخلي او دوی به د قیامت تـر ورځـې پـورې پـه خپـل ټـاکلي نظام د الله ﷻ په امر چلیږي او خپل مسیر نه غلطوي او نه پرې کیږي. د «دائبین» کلمه منصوبه ده ځکه چې حال واقع ده او معنا یې دا ده چې د خپل عادت مطابق دوامداره حرکت او سیر کـوي د الله ﷻ د امـر تـابع دي او همدارنګـه الله تعالی انسانانو ته ټول هغه شیان ورکړی چې غوښتي یې دي.

بیا الله تعالی د خپلو نعمتونو ذکر کوي چې انسانانو ته یې ورکړي او دومره ډیر زیات او بـی شـمیره نعمتونـه دي چـې انسان هغه نه شي شمیرلی خو انسان ډیر غافل دی چې د الله تعالی د بې شمیره نعمتونو ناشکري کـوي او دا د انـسان د خپل ځان سره لوی ظلم دی.

«إِنَّ الإِنسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ» د انسان د کلمې څخه مراد ټول انسانان دي (له دې نه وروسته د انسان د ظلم او کفـر د څرنګـوالي بیان دی).

امام بیهقي په خپل کتاب کې د ابو درداء څخه نقل کوي او وایي چې څوک د الله نعمتونه نه پیژني مګر د ډوډۍ خوړلو او اوبو ښښلو په وخت کې نو په تحقیق سره دده عمل کم شو او عذاب ورته لازم شو یعنې دده نیک اعمال

کمیږي او عذاب یې زیاتیږي، او همدارنګه بیهقي د ابی ایوب القرشي څخه نقل کوي او وايي چې داود علیه السلام وويل: ای زما ربه! ماته خبر راکړه ستا د ادنی نعمت چې ماته دې راکړی نو ورته وحې وشوه چې ای داوده! تنفس وکړه، کله یې چې تنفس وکړ ورته وویل شوه چې دا زما ادنی نعمت دی پر تا باندې.

**د کلماتو معنا**

**د لوست میتود:** مطالعه، په ډله ییزه توګه، تشریحي.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسیر شریف کتابونه، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنی دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>- څوک کولای شي د تیر لوست یو آیت له یاده ووایي؟<br>- څوک کولای شي د تیر لوست د ګټو څخه یوه ګټه ووایي؟<br>محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک په ښکلي خط سره پر تخته لیکي او لوست د الله ﷻ په نوم شروع کوي. |
| ۲۵دقیقې | ښوونکی لومړی د لوست مبارک آیتونه په ښه آواز او د تجوید په مراعاتولو سره قرائت کوي او بیا د زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست متن په چوپتیا سره مطالعه کړي او پدې وخت کې ښوونکی د لوست بغلي او جانبي عنوانونه په تخته لیکي، د لوست په بغلي او جانبي عنوانونو رڼا. وروسته محترم ښوونکی د لوست په شرح کولو پیل کوي او لازم معلومات زده کوونکو ته بیانوي او همدارنګه د لوست مهمو ټکو ته اشاره کوي او هغه ښه شرح کوي ترڅو زده کوونکي پرې پوه شي او د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب ورکوي او بیا ټول زده کوونکي په دوو ډلو ویشي او دنده ورکوي چې د لمر او سپوږمی د پیدایښت او ګټو په هکله خپلو کې مباحثه او مناقشه وکړي.<br>**ارزونه**<br>- څوک ویلای شي د ورځې او شپې بدلون څه ګټې لري؟<br>- څوک کولای شي د لوست د ګټو څخه یوه ګټه او فایده ووایي؟<br>- څوک کولای شي هغه آیتونه چې د لمر او سپوږمی په هکله راغلي ووایي؟ |
| ۱۰دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>- الله تعالی لمر، سپوږمی، شپه او ورځ ټول د انسان د ګټې لپاره پیدا کړي دي.<br>- الله ﷻ په دې آیتونو کې ځینې نعمتونه چې انسانانو ته یې ورکړي بیان کړي دي.<br>- د الله ﷻ نعمتونه ډیر زیات او بی شمیره دي انسان نشي کولی چې هغه وشمیري او حساب یې کړي.<br>- انسانانو ته نه ښایي او نه مناسب ده چې د الله ﷻ د نعمتونو ناشکري وکړي بلکې باید د الله ﷻ د نعمتونو شکر پرځای کړي. |
| ۵دقیقې | **کورنی دنده**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست فواید په خپلو کتابچو کې ولیکي او له یاده یې زده کړي. |

## نهم لوست: د الله ﷻ په لوري بلنه

**مخ: ۳۵ – ۳۸**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د مبارکو آیتونو تلاوت په سمه توګه وکړای شي.
- د ښو او بدو توپیر وکړای شي.
- د مبارکو آیتونو په مفهوم وپوهیږي.
- د بدۍ په مقابل کې ښه کول زده کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

الله سبحانه و تعالی د فصلت سورت په دې آیتونو کې چې دې ته د حم السجده سورت هم وایي د هغو نیکو مؤمنانو صفات بیانوي چې دوی د الله ﷻ لارې ته خلک رابلي او نیک عمل هم کوي.

هو! د مؤمن لپاره دا دوه ډېر غوره صفتونه دي چې خپله هم په هغو شیانو عمل وکړي چې الله ﷻ وربانديې مأمور کړی او بیا نور خلك هم دغه نیک عمل او د الله ﷻ نیکۍ لارې ته رابلي چې دا نهایت او بې حده ډېر غوره عمل دی لکه چې الله ﷻ فرمایي «وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَا إِلَى اللَّهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ» ځینې علماء وایي چې دا آیت د مؤذنینو په باره کې نازل شوی خو دومره خبره ده چې دا آیت مکي دی او اذان په مدینه منوره کې مشروع شوی دی.

خو اولی او بهتره خبره دا ده چې آیت په عموم سره حمل شي نو هر چا چې له هرې لارې د الله لوري ته بلنه وکړه هغه د آیت په مفهوم کې داخل دی.

د دعوت په هکله ویل شوي چې دا دعوت د الله ﷻ توحید او د هغه اطاعت ته دی نو هر چا چې د الله ﷻ لارې او شریعت ته دعوت وکړ او بیایې نیک او صالح عمل هم وکړ نو ددې څخه ښه او غوره عمل نشته. ددې نه وروسته الله تعالی فرمایلي چې نیکي او بدي برابر نه دي نیکي د الله ﷻ خوښه ده او ثواب پرې ورکوي او بدي الله ﷻ بده ګڼي او عذاب لري. او همدارنګه الله تعالی امر کوي چې تاسو بدي په نیکۍ سره دفعه کړئ؛ چا چې درسره بدي وکړه د هغه ځواب په بدۍ سره مه ورکوئ بلکې د هغه ځواب په نیکۍ سره ورکړئ چې دا غوره عمل د مسلمان صفت دی، ددې نه موږ پوهیږو چې د اسلام دین څومره د رحمت او ترحم او دوستۍ او نرمۍ دین دی هیڅ بد او دښمني او بد چلند نه خوښوي او خلك د کینې، حسد، بغض او عداوت څخه منع کوي چې وروسته ددې څخه الله ﷻ ددې کسانو په هکله فرمایلي «وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ» یعني دا عمل چې بدي په نیکۍ سره دفعه کوي او د بدو په مقابل کې ښه کوي دا کار او عمل هغه کسان کوي چې دوی د صبر او استقامت خاوندان وي او بدي په صبر سره وزغمي او هغه کسان دا کار کوي چې د لویې برخې خاوندان دي، او قتاده رضي الله عنه ویلي چې مطلب ورڅخه جنت دی یعني دا کار هغه څوك کوي چې جنت ورته واجب دی.

مجاهد او عطاء ویلي چې د «بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ» څخه مراد سلام دی کله چې د هغه چا سره مخ شې چې تاسره دښمني لري نو سلام پرې واچوه. او ځینې وایي چې مطلب ورڅخه مصافحه او ستړي مشي دي په وخت د ملاقات کې د هغه چا سره چې له تا سره دښمني لري نو که دا کار وشي نتیجه به یې دا وي چې هغه دښمني او عداوت به په دوستۍ او نرمۍ بدل شي.

**د کلماتو معنا**

وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ: او نده برابره نیکي له بدۍ سره.

كَأَنَّهُ: لکه چې هغه.

**د لوست میتود:** د آیتونو تلاوت، مباحثه، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسیر کتابونه، پوستر.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي له نظم، حاضري اخستلو او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي او د درسي کتاب له پوښتنو څخه زده کوونکي ارزوي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک په ښکلي غټ خط سره پر تخته لیکي او بیا د لوست مبارک آیتونه د تجوید د قواعدو په مراعاتولو سره تلاوت کوي، او بیا د نمونې په ډول دغه آیتونه په دوو تنو زده کوونکو تلاوت کوي.<br>محترم ښوونکی د لوست متن دوه برخې کوي او هره برخه په یوه زده کوونکي لولي او په دې وخت کې ښوونکی مشکلې او سختې کلمې په تخته لیکي او معنا کوي يې.<br>محترم ښوونکی د لوست مهم ټکې او کلمې په لنډه توګه زده کوونکو ته تشریح کوي.<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د فعالیت سره سم زده کوونکي په دوو ډلو ویشي او هر ډول آسانتیاوې ورته برابروي، مرسته او کومک ورسره کوي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د پوښتنو نه په استفادې سره د زده کوونکو څخه پوښتنې کوي او د لوست په هکله ځان مطمئن کوي او که کوم زده کوونکی نه پوهیږي د هغه سره مرسته او کومک کوي او تشویقوي يې.<br>**د لوست لنډیز**<br>• د اسلام مبارک دین ته بلنه د هر مسلمان دنده ده.<br>• د الله تعالی لوري ته بلنه، باید په ډیرې نرمۍ او ښو اخلاقو سره وشي او د ښه سلوک او حکمت څخه کار واخستل شي.<br>• په دې باید پوه شو چې ښه او بد سره برابر نه دي، الله ﷻ په ښو کړو وړو راضي کیږي او کوونکي ته يې اجر او ثواب او بدي کوونکو ته جزا او سزا ورکوي.<br>• انسان باید د غوسې او قهر په وخت کې له صبر او زغم څخه کار واخلي. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د الله ﷻ لوري ته د بلنې طریقه په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## لسم لوست: ایمان او نیک عمل

**مخ: ۳۹ – ۴۱**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د العصر د سورت په معنا او مفهوم ښه پوه شي.
- د وخت په ارزښت پوه شي او ورڅخه ګټه واخلي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د (عصر) سورت مکي دی او درې آیتونه لري، د تلاوت له مخې په قرآن مجید کې (۱۰۳) او د نـزول لـه کبلـه (۱۳) سورت دی چې وروسته د (انشراح) سورت څخه نازل شوی دی.

امام الطبراني او بیهقي روایت نقل کړی چې کله به د نبي علیه السلام له اصحابو څخه دوه کسان یو د بل سره مخامخ شول ترهغه به نه جدا کیدل ترڅو پورې چې یو بل ته به یې د العصر سورت یادونه نه وه کړې.

مفسرینو د عصر ډېرې معناوې کړې دي ځینې وايي چې معنا یې د ورځې وروستۍ ساعت دی. او ځینـې وایـي چـې مراد ورڅخه د مازدیګر لمونځ دی چې صلاة الوسطی ورته وايي. او ځینې وايي چې مراد ورڅخـه د پیغمبرﷺ وخـت دی خو راجح هغه اول قول دی.

«إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ» دا د قسم ځواب دی، د انسان څخه مطلب ټول انسانان دي ځکه چې د انسان لفـظ پـه عمـوم دلالت کوي.

«خُسْرٍ» تاوان، نقصان او زیان ته وایی، وخت او عمر د انسان لپاره د رأس المال (پانګې) حیثیت لـري. کـه انـسان خپـل قیمتي وخت او عمر په عبثیاتو، ګمراهیو او ضلالت کې تیر کړي او د الله ﷻ د اطاعت او حقـې لارې څخـه بـې پـروا شي نو دا د هغه تاجر په شان دی چې په خپل تجارت او رأس المال کې تاوان وکړي. که د انسان هره پانګه لـه منځـه ولاړه شي په کوښښ سره به بله پانګه لاس ته راوړي، خو د انسان وخت او عمر داسې پانګه ده چې ددې پانګې یـوه ثانیه هم په هر ډول زیار او کوښښ سره بیا لاس ته نـه راځـي. او دا عمـر د واورې حیثیـت لـري کـه یـو سـړی خپلـه سرمایه په واوره بنده کړي او ددې واورې څخه په بیړه او چټکتیا سره کاروانخلي نو واوره خو هره ثانیـه او هـره شـیبه په ویلو کیدو ده او له منځه ځې نو د انسان عمر هـم هـره ثانیـه پـه ختمیـدو دی بایـد پـه ډېـره عجلـه د الله رضـا پـرې حاصله کړي او هغه ابدي ژوند لاس ته راوړي.[1]

«إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ» مګر هغه کسان ددې خسران او تاوان څخه خلاص دي چې هغوی ایمان راوړي په الله او نیک عمل کوي، دوې به د همیش او ابد لپاره کامیاب او په ګټه کې وي چې هغه د آخرت ګټـه او کامیـابي ده.

«وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ» او هغه کسان دي چې یو بل ته په حق سره توصیه کوي چې هغه ایمان پـه الله دی او د هغه توحید دی او د شریعت په لار تلل او د منکراتو څخه ځان ساتل دي. او همدارنګـه توصـیه کـوي پـه صـبر سره یعنې په نیکیو امر او له بدیو څخه په منع کولو کې چې څه تکلیف ورپیښیږي په هغـه صـبر کـوي او صـبر کـول ډېر ثواب او لوی اجر لري لکه چې الله تعالی فرمایلي«إِنَّ اللّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ» الله تعالی د صابرینو سره دی.

[1] چې جنس انسان په خسران کې دی تاکید افاده کوي

نو دغه پورتني کسان چې ایمان یې راوړی او نیک عمل کوي او توصیه په حق او صبر سره کوي دا د نقصان او خسران څخه خلاص دي او هغه څوک چې دا صفتونه نلري هغوی ټول په خسران، تاوان او نقصان کې دي لکه څنګه چې مخکې ذکر شوه.

**د لوست میتود:** مباحثوي، ډله ییز، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسیر شریف کتابونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنۍ دندې کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>- څوک ویلای شي چې نیکي ولې د بدۍ سره برابره نه ده؟<br>- د الله ﷻ لوري ته د بلنې طریقه څنګه ده؟<br>محترم ښوونکی د (عصر) سورت په دوو تنو زده کوونکو تلاوت کوي او د هغوی تجویدي قواعد او غلطیانې اصلاح کوي او بیا زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په چوپتیا سره مطالعه کړي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د (عصر) د سورت ترجمه او تفسیر بیانوي او زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې خپلو منځو کې د وخت د ارزښت په اړه مباحثه او خبرې وکړي وروسته بیا درې تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته را غواړي چې هر یو په خپل وار سره د خپلې مباحثې او مناقشې معلومات نورو ته څرګند کړي او د ښوونکی له خوا ورسره مرسته کیږي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکی په څلورو ډلو ویشي او هرې ډلې ته دنده ورکوي په داسې ډول چې لومړی ډله به د (عصر) په معناګانو کې خبرې اترې کوي او دویمه ډله به د (عصر) سورت د آخرني آیت په ترجمه او معنا کې بحث کوي او دریمه ډله به د (عصر) د سورت په مقام او ارزښت کې مباحثه او مناقشه کوي او څلورمه ډله به د (عصر) سورت د فوایدو په هکله مباحثه او خبرې کوي.<br>**ارزونه**<br>- څوک د لوست ګټې بیانولی شي؟<br>- څوک د (عصر سورت) مقام او ارزښت بیانولی شي؟<br>- څوک ویلای شي چې ولې الله ﷻ په زمانې سره قسم یاد کړی دی؟<br>- څوک ویلای شي چې امام شافعی رحمه الله د عصر سورت په هکله څه ویلي دي؟ |
| ۱۰دقیقې | **د لوست ګټې**<br>- الله تعالی په دې سورت کې په زمانې او وخت قسم یاد کړی نو باید انسان د وخت په ارزښت پوه شي.<br>- ځینې مفسرین وایي چې د عصر څخه مطلب د مازدیګر وخت او یا د مازدیګر لمونځ دی.<br>- هغه کسان چې په خسران و تاوان کې نه دي څلور صفتونه لري چې هغه دادي: ایمان، صالح عمل، په حق سره توصیه او امر کول او په صبر سره توصیه کول.<br>- د عصر سورت د انسان او بشریت د ژوندانه کړه او وړه او تګ لاره، ښه او بد په دریو وړو آیتونو کې په لنډو جملو او کلمو کې بیان کړي دي. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست فواید او ګټې خپلو کتابچو کې ولیکي او یاد یې کړي. |

# يوولسم لوست: امانت او د هغه ارزښت

مخ: ۴۲ – ۴۵

وخت: درې درسي ساعتونه

موخې: زده کوونکي باید:

- د امانت په ارزښت په سمه توګه وپوهيږي.
- د الله ﷻ او د هغه د پيغمبر ﷺ او د اولی الامر په اطاعت پوه شي.
- د امانت او امانتدارۍ شرعي مفهوم وپيژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

الله ﷻ فرمايلي «إِنَّ اللّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤدُّواْ الأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا.....» ددې مبارکو آيتونو مناسبت د مخکې سره دا دی چې کله الله ﷻ د يهودو عناد، حسد، دښمني، د دوی انکار او همدارنګه د دوی لپاره چې الله ﷻ په آخرت کې کوم سخت او دردناک عذاب بيان کړی دی نو وروسته الله ﷻ مؤمنان نيکې او ښې لارې ته چې د نجات لاره ده رابلي چې هغه د امانت سپارل دي خپل اهل او صاحب ته او عادلانه قضاوت دی چې بايد د خلکو په منځ کې وشي او همدارنګه د الله تعالى او د هغه د رسول اطاعت دی چې په ټولو امورو کې بايد ترسره شي او دا خطاب او امر عام دی چې ټول مکلف اشخاص پکې داخليږي او ټول هغه حقوق چې تر انسان پورې اړه لري هغه که حقوق الله دي او يا حقوق العباد په دې کې شامل دي.

همدارنګه الله ﷻ امر کړی چې د خلکو په منځ کې بايد په عدالت سره قضاوت او فيصلې وکړئ چې بې عدالتي ونه شي او فيصله کوونکی بايد عالم وي يعني په کتاب الله او نبوي سنتو پوه وي ځکه جاهل عدالت نه شي کولی.

«نِعِمَّا» د (نعم) څخه دی او (ما) د تشخيص لپاره دی يعنې ډېر ښه او ځومره ښه.

د پورتنې مبارک آيت د نزول د سبب په هکله ويل شوي چې د عثمان بن طلحه څخه چې د کعبې شريفې خادم و د کعبې کلي واخستی شوې، نو الله ﷻ دا آيت نازل کړ، چې له امله يې رسول ﷺ امر وکړ چې کيلي دې بيرته عثمان بن طلحه ته ورکړل شي.

«الأَمَانَاتِ» جمع د امانة ده چې مصدر دی د مفعول په معنا سره.

امانت: يو چاته د شي سپارل د ساتنې لپاره او يا د شي ساتنه ده خپل څښتن ته د بيرته سپارلو په نيت چې ضايع نه شي. او ضايع کول د امانت خيانت او لويه ګناه او د ټولنې او جامعې بربادي ده، نو بايد د امانت ساتلو او ادا کولو ته ډېره توجه وشي چې د اسلام دين په دې هکله ډېر ټينګار کړی دی او ددې په هکله ډېر احاديث شتون لري چې يو يې دا دی پيغمبر ﷺ فرمايلي: **لا ايمان لمن لاأمانة له.**

يعنې څوک چې امانت نه رعايت کوي هغه ايمان نلري او همدارنګه په بل حديث شريف کې د امانت خيانتول د منافق يو له درې خصلتونو څخه شميرل شوی دی.

امانت لکه څرنګه چې الله ﷻ فرمايلي:«إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ.......» يعنې موږ امانت په اسمانونو او ځمکې او غرونو پيش کړ خو هغوی قبول نکړ د ويرې او خوف څخه؛ ځکه امانت ډېر لوی شان لري او غټ مسؤوليت دی او همدارنګه الله ﷻ په اطاعت امر کړی چې د الله ﷻ او د رسول ﷺ او د اولی الأمر يعنې د حاکم، مشر، د مسلمانانو د سرلښکر، د اهل علم اطاعت او پيروي وشي د الله ﷻ اطاعت د هغه د کتاب (قرآن مجيد) منل او په هغه عمل کول (د اوامرو او نواهيو اطاعت يې) دی او د رسول ﷺ اطاعت هغه ټول شيان دي چې ده کړي (دده د سنتو پيروي ده).

د «أولی الأمر» اطاعت تر هغه باید وشي ترڅو چې د کتاب الله او سنت د رسول الله سره مخالف نه وي لکه په حدیث شریف کې چې راغلی:(**لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق**) د مخلوق اطاعت هغه وخت کیږي چې د الله ﷻ معصیت او ګناه نه وي پکې خو که چیرته د الله ﷻ او د هغه د رسول معصیت و نو بیا یې اطاعت نشته او باید و نه شي.

**د لوست میتود:** تشریحي، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسیر شریف کتابونه.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنۍ دندې کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>- څوک د تیر لوست آیتونه معنا کولی شي؟<br>- څوک کولای شي د تیر لوست د آیتونو مختصر تفسیر وکړي؟<br>محترم ښوونکی د نوي لوست (۵۸ – ۵۹) مبارک آیتونه د تجوید د قواعدو په رعایت سره په لوړ آواز تلاوت کوي او وروسته د دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې همدغه آیتونه په سمه توګه تلاوت کړي او غلطیانې یې اصلاح کوي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د لوست متن په وار سره په څو تنو زده کوونکو باندې لولي او په دې بهیر کې ښوونکی د لوست مهم ټکې او نقطې په تخته لیکي او وروسته یې معنا او شرح کوي.<br>محترم ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د هغو کلمو معنا او مفهوم بیان کړي کومې چې په تخته لیکلې دي او دده له خوا ورسره کومک او همکاري کیږي او تشویق کیږي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه**<br>- ولې الله تعالی په عدل سره خلکو ته امر کړی دی؟<br>- د امانت شرعي مفهوم کومو شیانو ته شامل دی؟<br>- په کومو حالاتو کې د اولی الامر اطاعت پر مسلمانانو لازم دی؟<br>**د لوست لنډیز**<br>- د خلکو په منځ کې په عدل سره باید قضاوت وشي.<br>- موږ ټول باید د امانت او د هغه په ارزښت پوه شو.<br>- کوم وخت چې د مسلمانانو په منځ کې څه نزاع او ستونزې پیدا شي باید د الله ﷻ او د نبی ﷺ سنتو (احادیثو) ته رجوع وشي.<br>- امانت هغه ته وایي چې انسان یې په ساتلو د اعتماد وړ وګرځي برابره ده چې هغه امانت مادي وي او که معنوي. |
| ۵دقیقې | - الله تعالی مسلمانانو ته امر کړی چې امانت خپل خاوند او څښتن ته رد کړي او وریې کړي.<br>- پیغمبر ﷺ په ډیرو احادیثو کې د امانت په هکله فرمایلي چې باید امانت په ښه توګه وساتل شي او هغه ته پوره خیال وشي او بیرته خپل صاحب ته ورکړ شي.<br>**کورنۍ دنده**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست ګټې او فواید په خپلو کتابچو کې ولیکي او یاد یې کړي. |

# دوولسم لوست: د وینا او کړنې یووالی

**مخ:**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- په امر بالمعروف او نهی عن المنکر ښه وپوهیږي.
- د لوست د آیتونو په معنا او ترجمه پوه شي.
- مرسته او استعانت غوښتل په صبر او لمونځ سره زده کړي او عمل پرې وکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

لوی رب العزت فرمايي:«وَلاَ تَلْبِسُواْ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ.....» دلته خطاب یهودو ته دی یعني تاسو حق د باطل سره مه ګډوئ او حق مه پټوئ؛ حق چې په تورات کې له تاسو سره دی چې هغه د پیغمبرﷺ صفات او د نبوت بشارت دی ځکه چې دوی د پیغمبرﷺ د نبوت حق پټ کړ او دوی په خپل کتاب کې تغیر، تبدیل او تحریف وکړ او حال دا چې دوی ته دا حق معلوم وه او ښه پرې پوهیدل مګر دوی د عناد د وجې پټ کړ سره ددې چې دوی د حق پټولو او کتمان په ضرر پوهیږي او حال دا چې د عالم جزاء ډیره او عذاب یې سخت دی.

وروسته له دې څخه الله ﷻ د لمانځه او زکات په ادا کولو امر کړی چې د دواړه د دین عملي ارکان دي او بیا یې فرمایلي (وارکعوا مع الراکعین) دلته په آیت کې د لمونځ تعبیر په رکوع سره شوی؛ ځکه د بنی اسرائیلو په لمانځه کې رکوع نه وه). او د (مع الراکعین) څخه مطلب په جماعت سره لمونځ اداکول دي. نو لکه څنګه چې په لمانځه کې پاکوالی د نفس دی همداسي په زکات کې هم د مال پاکوالی دی.

له دې څخه وروسته الله ﷻ د هغه چا حال بیانوي چې خلکو ته امر په نیکۍ سره کوي او په خپله پرې عمل نه کوي فرمایي: «أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ......» د ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې دغه آیت د مدینې منورې د یهودو په باره کې نازل شوی او استفهام دلته د توبیخ لپاره دی، ځکه دوی داسې و چې خلکو ته یې امر په نیکۍ کاوه او بیا یې په خپله هغه کار نه کاوه خو خلاصه مطلب دا چې دا آیت د أهل کتابو په باره کې نازل شوی خاصتا ددوی د احبارو او رهبانو په هکله چې دوی دا عمل کاوه یعني خلکو ته به یې په نیکۍ امر کاوه او دوی به پخپله عمل نه پرې کاوه دا امر اګر چې د یهودو او اهل کتابو لپاره وه مګر دا امر ټولو خلکو ته متوجه دی ځکه ″العبرة بعموم اللفظ لا بخصوص السبب″، عبرت عموم لفظ ته دی نه خصوص سبب ته

**د کلماتو معنا**

معروف: ښه او نیک او مشروع کارونه.

منکر: بد او ناوړه او غیر مشروع کارونه.

**د لوست میتود:** په چوپتیا سره مطالعه کول، مباحثه، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسیر شریف کتابونه.

د لوست بهیر

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنی دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>- څوک ویلی شي امانت د شرعي مفهوم له مخې کومو شیانو ته شامل دی؟<br>- د اولی الامر (امیر) اطاعت کوم وخت په مسلمانانو لازمیږي؟ |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک په ښه خط سره په تخته لیکي.<br>محترم ښوونکی نوی لوست پیل کوي او لومړی د لوست آیتونه د نمونې په ډول تلاوت کوي او وروسته د زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپتیا سره مطالعه کړي او دی په دې وخت کې د لوست بغلي عنوانونه په تخته لیکي او بیا د یوه تن زده کوونکي څخه غواړي چې د لوست متن په لوړ آواز سره ولولي او وروسته ښوونکی لوست تشریح کوي او بیا د دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګی مخې ته راشي او هر یو په خپل وار سره د لوست معنا او مفهوم ووایي.<br>محترم ښوونکی د لوست په هکله د څینو زده کوونکو څخه پوښتنې کوي او له پاتې زده کوونکو څخه غواړي چې د هغوی ځوابونه تصحیح کړي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>محترم ښوونکی هغه فعالیت چې په درسي کتاب کې ذکر شوی په زده کوونکو اجرا کوي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه**<br>- څوک ویلای شي چې د صبر معنا څه ده؟<br>- څوک به د لوست هغه آیت چې په لمانځه او زکات یې امر کړی له یاده ووایي؟<br>- څوک ددې لوست ګټې بیانولی شي؟<br>**د لوست لنډیز**<br>- الله تعالی په دې مبارکو آیتونو کې ټولو خلکو ته امر کړي دی چې حق مه پټوئ او د حق پلوي او په حق سره چلند وکړئ.<br>- په دې لوست کې د اسلام دوه بنسټونه او رکنونه چې لمونځ او زکات دي ذکر شوي دي.<br>- د مسلمان وینا او کړنه باید یو شان وي، هسې نه چې په خوله یوڅه وایي او په عمل کې بل څه کوي.<br>- مسلمان باید په هر وخت کې په صبر او لمانځه سره له الله ﷻ څخه مرسته او استعانت وغواړي. |
| ۵دقیقې | **کورنی دنده**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست ګټې په خپلو کتابچو کې ولیکي او یادې یې کړي. |

## دیارلسم لوست: د اللهﷻ له ذکر نه د سرغړونې پایله

**مخ: ۵۰ – ۵۲**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- په دې پوه شي چې د قرآن کریم پیروي په دنیا او آخرت کې د انسان د عزت او کامیابۍ لامل ګرځي.
- د ناوړه او بد اخلاقو کسانو سره د ناستې ولاړې (ملګرتیا) خرابې پایلې وپېژني.

**د ښوونکی لپاره اضافي معلومات:**

اللهﷻ په دې آیتونو کې د هغه چا حا ل بیانوي چې دوی دده د ذکر (قرآن) او ایمان او حق څخه سرغړونه کوي او د شیطان لاره غوره کوي او د هغه ملګرتیا کوي.

«وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ الرَّحْمَنِ....» ددې مبارك آیت د نزول په هکله ویل شوي دي چې قریشو وویل پیغمبرﷺ د هر سړي لپاره یو کس ټاکلی چې خپلې لارې ته یې را دعوت کړي نو ابوبکرﷺ ته یې حضرت طلحه بن عبیدالله ولیږه کله چې طلحه ابوبکر ته ورغی، ابوبکرﷺ ورته وویل: څه شي ته ما غواړې او څه دعوت راکوې؟ هغه ورته وویل چې تا راغواړم د لات او عزی عبادت ته، ابوبکرﷺ وویل: لات څوك دی؟ ورته یې وویل د الله زوی دی، بیا یې ورته وویل چې عزی څوك دی؟ هغه ورته وویل چې د الله لور ده.

ابوبکرﷺ ورته وویل چې د دوی مورګانې څوك دي؟ طلحه چپ شو او ځواب یې ورنکړ بیا یې خپلو ملګرو ته وویل ځواب ورکړئ دغه سړي ته یعنې ابوبکر ته، ملګري یې هم چپ شول ځواب یې ورنکړ، طلحه وویل: ودریږه یا ابابکره (أشهد أن لا اله الا الله و أشهد أن محمدا رسول) زه شاهدي وایم چې الله تعالی یو دی او محمدﷺ د الله رسول دی چې دې نه وروسته دا آیت نازل شو خو عبرت عموم لفظ ته وي نه خصوص سبب ته.

معنا د آیت داسې ده: چا چې اعراض وکړ د قرآن مجید څخه او هغه څه څخه چې په قرآن مجید کې دي د باطل لارې ته یعنې د بطلان او ضلالت لار یې اختیار کړه، نو الله تعالی به دغه شخص ته جزا او عذاب ورکړي په شیطان سره شیطان به په ده مقرر او مسلط کړي ترڅو پورې دی ګمراه کړي او د نجات او هدایت له لارې څخه یې بې لارې کړي چې دغه شیطان به دی ملامتوي.

(قرین) ملازم او نه جدا کیدونکی.

«وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ» او دغه شیطانان چې اللهﷻ په اعراض کوونکو مقرر کړي دوی به د نیکۍ او سمې لارې څخه بندوي او منع کوي به یې.

«حَتَّى إِذَا جَاءنَا» مطلب ورڅخه کافر او یا هغه دده شیطان چې دده ملګری وه، نو کافر به شیطان ته وایي چې کاش زما او ستا په مابین کې د مشرق او مغرب د مسافې په اندازه لرېوالی وای یعنې چې ستا ملګرتیا مې نه وای کړې چې په دغه وخت به دده دغه وینا هیڅ فایده نلري او دا کافر او دده شیطان به د خپل ظلم په وجه په شریکه په عذاب کې وي.

وروسته ددې څخه اللهﷻ خپل پیغمبرﷺ ته تسلې ورکوي چې دی په دې خلکو چې ایمان نه راوړي، قرآن نه قبلوي، د اللهﷻ څخه اعراض کوي او د شیطان ملګرتیا غوره کوي باید غم او خفګان ونکړي ځکه چې دی په دې کافر قادر نه دی او د کفارو مثال د کڼو او ړندو په شان دی چې حق نه اوري او نه یې ګوري.

(أَفَأَنتَ.....) دلته همزه د انکار او تعجب لپاره ده.

**د کلماتو معنا**

لامل: عامل، سبب.

مستولی: واکدار او د تسلط خاوند.

**د لوست میتود:** سیالي، مباحثه، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسیر شریف کتابونه، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>- څوک کولای شي چې د صبر معنا بیان کړي؟<br>- څوک ویلی شي د تیر لوست هغه آیت چې د لمانځه او زکات ذکر یې کړی له یاده ولولي؟ |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک په ښه او غټ خط سره په تخته لیکي او د نوي لوست مبارک آیتونه په ښه لوړ آواز د تجوید د قواعدو په رعایت کولو سره تلاوت کوي او وروسته د دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې دغه آیتونه په خپل وار سره سم تلاوت کړي او ښوونکی ورسره مرسته او کومک کوي او غلطیانو ته یې متوجه کیږي او هغه اصلاح کوي.<br>محترم ښوونکی د لوست متن په څو تنو زده کوونکو په وار سره لولي او وروسته ښوونکی د لوست په معنا، ترجمې او تفسیر پیل کوي او لازم توضیحات او تشریح ورکوي.<br>محترم ښوونکی د سیالی او مسابقې لپاره زده کوونکی په دوو ډلو ویشي او لومړی ډلې ته دنده ورکوي چې د لوست په بغلي عنوان «هدایت یوازې د الله ﷻ له لوري څخه دی» په خپلو منځو کې بحث او مناقشه وکړي او دویمی ډلې ته دنده ورکوي چې د لوست په ګټو او پایلو خپلو منځو کې بحث او خبرې اترې وکړي چې وروسته بیا د هرې ډلې څخه یو تن زده کوونکی د نورو په استازیتوب د ټولګي مخې ته راغواړي څو د خپلې مناقشې او بحث نتیجه بیان کړي او د کوم شي په هکله چې دنده ورکړ شوې وه د هغه معلومات نورو ته بیان کړي.<br>په پای کې هر څوک چې ددې سیالی ګټونکی شو هغه بریالی اعلانیږي او ښوونکی یې پوره ستاینه او تشویق کوي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه**<br>- څوک ویلی شي چې شیطان د خپلو پیروانو سره څه کوي؟<br>- څوک د لوست ګټې او مفهوم په لنډه توګه بیانولی شي؟<br>- څوک د لوست د آیتونو ترجمه او لنډ تفسیر ویلی شي؟ |

| | |
|---|---|
| | **د لوست لنډیز**<br>- هر څوك چې د الله ﷻ له ذکر څخه سرغړونه کوي هغه د شیطان ملګری ګرځي او په ده به ډېر خراب او تنګ ژوند تیریږي او په دنیا او آخرت کې به خوار او ذلیل وي.<br>- هدایت یوازې د الله ﷻ له لوري څخه دی.<br>- منکرین او کافران د ګمراهۍ په لار او د شیطان په لار روان دي، په داسې حال کې چې دوی ځانونه سم او لار موندونکي بولي.<br>- د قرآن کریم پیروي د انسان لپاره د دنیا او آخرت د عزت او کامیابۍ لامل ګرځي. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست ګټې او پایلې په خپلو کتابچو کې ولیکي او یادې یې کړي. |

## څوارلسم لوست: نیکي څه ده؟

**مخ: ۵۳ – ۵۶**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د نیکۍ کولو په طریقو او ډولونو وپوهیږي.
- نیکي او نیک اعمال د خپل ژوند تګ لاره وګرځوي.
- د ایمان ارکان او بنسټونه ښه وپیژني او نورو ته یې بیان کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

«لَّيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّواْ......» الله تعالی په دې آیت کې د یهودو او نصاراوو په خبرو رد کوي چې دوی د قبلې په هکله کولې چې ولې نبيﷺ د بیت المقدس څخه کعبې ته مخ واړاوه، نو الله تعالی وفرمایل چې دا کومه نیکی او نیک عمل نه دی چې مخونه مشرق او یا مغرب ته ګرځوئ بلکه نیکي او نیک عمل دا دی چې په الله او د آخرت په ورځ، ملائیکو او په کتاب الله چې قرآن مجید دی او په پیغمبرانو ایمان راوړئ. نیکي دغې ته وایي چې په دغو ذکر شوو شیانو ایمان راوړي او همدارنګه چې د خپل مال څخه صدقه او خیرات ورکړي هغه مال چې دی یې خوښوي او ورته محبوب وي خپلو اقاربو، یتیمانو، مسکینانو، مسافرو، سوال کوونکو او غلامانو ته ورکړي. او همدارنګه چې لمونځونه قایم کړي یعنې فرض لمونځونه ادا کړي په سمه طریقه او خپل وخت سره او هغه فرض شوی زکات ورکړی او په خپلو وعدو وفا وکړي چې په مابین ددوی او د خلکو کې وي او صبر او استقامت وکړي د فقر، مرض او د کفارو د قتال په وخت کې چې دغه ټول صفات د نیکو خلکو او مؤمنانو دي او دغه کارونه چې پورته ذکر شوه د نیکی او ثواب عملونه دي نه د یهودو او نصاراوو هغه خبرې چې قبله څنګه شوه او ولې نبيﷺ مخ واړاوه او مخ مشرق ته ښه دی او که مغرب ته دا هسې بی فایدې او عبث خبرې دي بلکی د نیکی اعمال دا دي چې پورته ذکر شوه.

«أُولَـئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا» دغه پورتنې کارونه چې چا وکړه دغه خلک په رښتیا سره په حقه دي او دوی د حق په لارې روان دي چې دغه شیان ټول د ایمان د اصل څخه دي او د عمل حقیقت په دغو کارونو کې دی.

**د کلماتو معنا**

بیت المقدس: سپیڅلی او پاک کور، د مسلمانانو لومړۍ قبله.

برخلیک: سرنوشت، د کارونو پایلې.

مینځ پانګه: د لوست متن.

**د لوست میتود:** تشریحي، مباحثوي، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د تفسیر شریف کتابونه، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي او د ارزونې پوښتنې له درسي کتاب څخه زده کوونکو ته وړاندې کوي:<br>- څوک ویلی شي هغه کوم شی دی چې د حضرت رسول اکرمﷺ په توان او صلاحیت کی نشته لکه چې قرآن کریم ذکر کړي دي؟ |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک په ښه ښکلي او غټ خط سره په تخته لیکي او د لوست مبارک آیتونه د تجوید په رعایت کولو سره تلاوت کوي او وروسته د دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې مبارک آیتونه په وار سره ښه، سم په تجوید سره تلاوت کړي او ښوونکی ورسره پوره مرسته او همکاري کوي.<br>محترم ښوونکی دریو تنو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست متن ولولي او وروسته ښوونکی د لوست په معنا، تفسیر او شرحې پیل کوي.<br>محترم ښوونکی د یوه تن زده کوونکي څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او په تخته د لوست مشکل او سخت کلمات ولیکي او بیا د یوه تن څخه غواړي چې راشي او د دغو کلماتو معنا وکړي که چیرته یې دغه کلمات سم معنا نه کړه نو په خپله ښوونکی یې معنا کوي او همدارنګه د یوه بل زده کوونکي څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او د لوست بغلي عنوان (نیک عملونه) په تخته ولیکي او په دې موضوع بحث او خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي چې د ښوونکي له لوري ورسره مرسته کیږي.<br>او په آخر کې د دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې یو یې د آیتونو لنډه ترجمه او بل یې په لنډه توګه تفسیر بیان کړي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه**<br>- د لمونځ د ادا کولو مقصد څه دی؟<br>- هغه کوم دری حالتونه دي چې قرآن کریم پکې صبر او زغم ځانګړی کړی دی؟<br>- د (البرّ) معنا او مقصد څه دی؟<br>**د لوست لنډیز:**<br>-نیک او ښه اعمال او سلوک د رښتني ایمان نښه ده.<br>-غوره او کامیابه ټولنه هغه ده چې د اسلام د ستر پیغمبرﷺ پیروي کوي.<br>-ښه ټولنه هغه ده چې د خلکو په منځ کې یې رحم، زړه خوږی، یو د بل سره مرسته او مینه شتون لري.<br>-دا ټولنه د یوه جسم او بدن په شان ده کله چې د بدن په یو غړي درد شي ټول جسم او بدن ورڅخه په درد راځي چې دا د اسلامي ټولنې غوښتنه ده چې اسلامي ټولنه باید همداسی چلند وکړي.<br>- |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب څخه کورنۍ دنده ورکوي. |

## پنځلسم لوست: په اسلام کې د سولې ارزښت

**مخ: ۵۷ – ۶۰**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- په اسلام کې د سولې په اهمیت پوه شي.
- د بدی هغه دری خصلتونه چې په اسلام کې منع شوي وپيژني.
- دا زده کړي چې اسلام مسلمانان په یوه محور (ایمان) راجمع کوي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

الله تعالی په دې مبارکو آیتونو کې فرمایلي چې مسلمانان یو تر بله ورسره وروڼه دي نو بايد د خپلو وروڼو ترمنځ صلح وشي او دوی اختلاف، جنګ او جګړو ته پرې نه ښودل شي.

«إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ» دا مستأنفه جمله ده لپاره د تأکید د خپل ما قبل چې هغه په اصلاح سره امر دی نو معنا یې داسې ده چې دوی راجع دي یوه اصل ته چې هغه ایمان دی؛ د مسلمانانو اخوت او ورورولي په ایمان سره ده کله چې په ایمان او دین کې ټول متفق او جمع وي بيا رجوع کوي خپل یو بل اصل ته چې هغه نسب دی ځکه دوی ټول د آدم او حواء څخه دي، نو لکه څنګه چې لوی رب العزت ارشاد فرمایلی چې مؤمنان وروڼه دي او تاسو د خپلو وروڼو په منځ کې سوله وکړئ که چیرته یوې ډلې او طایفې خپل بغاوت نه پریښود او خپل جنګ او شخړو ته یې دوام ورکاوه نو بیا هغه باغي طایفه او ډله که سوله یې نه منله باید په زور د جنګ له لارې اصلاح شي یعنې اول تر خپل آخري حد پورې مسلمانان باید کوشش وکړي چې د دوو مسلمانانو او یا د دوو ډلو ترمنځ سوله وکړي خو که کومې ډلې سوله نه قبلوله هغه په زور د جنګ له لارې باید اصلاح شي تر څو د خدایﷻ حکم ته غاړه کیږدي.

وروسته ددې څخه اللهﷻ مسلمانانو ته حکم کوي چې یو د بل د استهزاء، مسخرو او ټوکو څخه ځانونه وساتي او د بدو القابو او نومونو او د عیبونو بیانولو څخه ډډه وکړي چې دا ډیره لویه ګناه ده لکه مخکې چې اللهﷻ د مسلمانانو حا ل بیان کړ چې دوی وروڼه دي په ایمان سره او ددوی په منځ کې باید سوله وشي نو همدارنګه دغه وروڼه باید د خپل بل ورور حقوق وساتي او هغه ته په احترام قایل وي و لو که هغه ډیر ادنی کس وي، نر وي او که ښځه دوی باید یو په بل پسې بیهوده خبرې، مسخرې او ملنډې ونه وهي او د هغوی هغه عیوب خلکو ته بیان نکړي چې د هغوی د سپکوالي سبب ګرځي او هغوی ته بد لقبونه او نومونه وانخلي چې هغوی پرې خفه کیږي او کیدای شي دغه کسان د اللهﷻ په نزد ددوی څخه بهتر وي.

مفسرین وایي چې بد القاب لکه چې یو مسلمان ته ووایي چې اې کافره ، یهودي، منافقه، فاسقه او داسې نور لکه خنزیر، سپی، خر او داسې بدې کلمې او لقبونه چې د اسلام او مسلمان له صفت سره نامناسبه وي باید استعمال نه شي.

او ډیر بد دی د یوه مسلمان لپاره د هغه نوم استعمال چې هغه فسق او په فسق دلالت کوي لکه کافر، زاني او داسې نور.

او په یوه قول کې ویل شوي چې چا د پورتنیو نواهیو څخه ځان منع نکړ یعنې تمسخر، د عیبونو بیان، د بدو القابو استعمال یې پرینښود نو دا کس پخپله فاسق دی نو چا چې له دغو ناوړو کارونو څخه توبه ونه کړه دا کسان ظالمان دي د هغه عمل په وجه چې اللهﷻ ورڅخه منع کړې ده.

دوی د نورو په حق کې هم ظلم کوي چې هغوی ته بد نظر کوي او د هغوی په شان کې مسخرې او بد القاب استعمالوي او د خپلو ځانونو په حق کې یې هم ظلم وکړ ځکه دا عمل ډېر بد عمل او ددې په وجه به دوی ته جزاء او عذاب ورکول کیږي.
نو الله ﷻ دې مورډ ټول د ظلم څخه وساتي ځکه چې ظلم ډېره لویه ګناه ده.

**د کلماتو معنا**

إِخْوَةٌ: وروڼه.
فَأَصْلِحُوا: پس تاسو سوله وکړئ.
بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ: په منځ د خپلو وروڼو کې.

**د لوست میتود:** توضیحي، مباحثوي، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکی:** د تفسیر شریف درسي کتاب، د تفسیر شریف معتبر کتابونه.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي لکه دغه سوال:<br>څوک کولای شي ووایي چې مقصد د (البر) څخه څه دی؟<br>محترم ښوونکی د (الحجرات) سورت مبارک آیتونه د تجوید په مراعاتولو سره تلاوت کوي او بیا دوو تنو زده کوونکو ته هدایت کوي چې په خپل وار سره دغه مبارک آیتونه تلاوت کړي.<br>د لوست متن په څو تنو زده کوونکو لولي او د مبارکو آیتونو ترجمه او تفسیر په پوره وضاحت سره بیانوي او د لوست مهم ټکي په تخته لیکي. وروسته د زده کوونکو څخه د لوست د مهمو ټکو پوښتنه کوي که چیرته زده کوونکو ځواب ووایه ښه او که نه په خپله ښوونکی د لوست مهم او کلیدي ټکې بیا په پوره وضاحت سره بیانوي. |
| ۲۵دقیقې | زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست د بغلي عنوانونو په هکله یو د بل سره خبرې اترې وکړي لکه (تمسخر) او (د بدو القابو نه استعمالول).<br>وروسته د څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره هغه موضوعات چې بحث یې پرې کړی د ټولګي په مخ کې په ساده ډول سره بیان کړي. |
| ۵دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>دغه لوست په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>- د لوست اولني آیتونه موږ ته یوه لویه قاعده تثبیتوي او راښیي چې هغه له اخوت او ورورګلوۍ څخه عبارت ده، د مسلمانانو په منځ کې ایماني ورورګلوي شتون لري، چې هغه ښه او بهتره ده د نسبي ورورګلوۍ څخه.<br>- سوله او پخلاینه د مسلمانانو په منځ کې د هر مسلمان وجیبه او پرې لازم ده.<br>- د الهي دستور له نظره الله ﷻ تمسخر او ملنډې وهل یو پر بل حرام ګرځولي دي.<br>- همدارنګه الله ﷻ د یو او بل یادول په بدو القابو او نومونو سره چې هغه یې بد ګڼي حرام ګرځولي دي.<br>- د قرآن مجید له نظره الله ﷻ د سورت حجرات په (۱۱) آیت کې درې شیان حرام ګرځولي چې عبارت دي له تحقیر، اشاره کولو او تمسخر څخه، یعنې یو کس ته په حقارت سره کتل او |

| | |
|---|---|
| په هغه ملنډې وهل، اشاره کول، په قصد د چا د عیب لټول او سپکوالی او په بدو القابو او نومونو سره یادول.<br><br>**ارزونه**<br>- مؤمنان څه شی راجمع کوي؟<br>- اسلام ولې موږ ته امر کړی چې مسلمانان په بدو القابو سره یاد نه کړو؟<br>- د اسلام له نظره د صلحې ارزښت بیان کړئ؟<br><br>**کورنۍ دنده**<br>زده کوونکي باید ددې لوست فواید په خپلو کتابچو کې ولیکي او حفظ یې کړي. | ۱۰دقیقې |

## شپاړسم لوست: د لقمان حکیم نصیحتونه خپل زوی ته (۱)

**مخ: ۶۱ – ۶۵**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

د لوست د آیتونو ترجمه په سمه توګه زده کړي.

لقمان حکیم وپیژني او د هغه نصیحتونه او پندونه ښه زده کړي.

په خپل ژوند کې د لقمان حکیم په نصیحتونو عمل وکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

ابن کثیر وایي چې د جمهورو سلفو په اتفاق لقمان نبي نه ؤ، یوازې حضرت عکرمهﷺ دده نبي والی ذکر کړی دی، خو سند یې ضعیف دی او امام بغوي فرمایې چې هغه فقیه او حکیم ؤ، نبي نه ؤ.

ابن کثیر وایي چې د حضرت قتاده نه دده په هکله یو عجیبه روایت نقل شوی چې الله تعالی حضرت لقمان ته اختیار ورکړی ؤ چې نبوت اخلې یا حکمت، نو ده حکمت غوره کړ. او په ځینو روایتونو کې راغلي چې ده ته د نبوت اختیار ورکړی شوی ؤ نو ده عرض وکړ چې که د الله حکم وي نو سر په سترګو، ورنه زه معافي غواړم او ددې خبرې لامل یې دا ذکر کړی چې نبوت لویه ذمه واري ده که پرته زما له غوره کولو راکړی شوی وای نو الله به په خپله ددې کفالت کړی وای او ما به یې فرائض اداء کړي وای او که زما په اختیار سره مې طلب کړی وای نو ذمه واري به یې په ما وای بل د «**أَنِ اشْكُرْ لِي**» حکم د الهام په واسطه کیدای شي او الهام اولیاء الله ته کیږي.

وایي چې حضرت لقمان ته دا عزت او منصب ددوو خبرو له وجې ورکړی شوی یو همیشه رښتیا ویل، دویم د فضولو او عبثو خبرو نه ځان ساتل. او دا هم وایي چې ماته دا درجه د څو کارونو له وجې حاصله شویده که تاسو یې حاصله کړی نو تاسو ته به هم دا مقام او درجه حاصله شي هغه دا چې: خپل نظر ښکته ساتل، ژبه بنده ساتل، په حلاله روزۍ قناعت کول، د خپلې شرمګاه ساتنه، په خبرو کې رښتیا والی، ژمنه پوره کول، د میلمه عزت او درناوی، د ګاونډي حق اداء کول او د عبثو او چټې خبرو نه ځان ژغورنه.

د حکمت په کلمو کې د ټولو نه اول د عقیدې سموالی دی او په عقیده کې تر ټولو مهمه او لومړنۍ خبره دا ده چې الله تعالی د ټولو نه مخکې د ټول عالم خالق او مالك پرته له شرکه ومنل شي او دده سره هیڅ غیر الله په ذات او صفاتو کې شریك نکړی شي او دا چې د الله کوم مخلوق د الله سره برابر وګڼل شي تر دې لوی ظلم نشته. په ورپسې آیت کې الله فرمایي چې که څه هم مور اولاد ته د خپل مور او پلار د پیروۍ او شکر ایستلو ډېر تاکید کړی دی او د خپلې پیروۍ او اطاعت سره سره د مور او پلار د شکر په ځای کولو حکم مو ورکړی دی خو شرك داسې عظیم او سنګین جرم دی چې دغه د مور او پلار په وینا او مجبورولو سره هم د چا لپاره نه روا کیږي یعنې که څوك دده مور او پلار د الله تعالی سره په شریکولو مجبوره کوي نو د مور او پلار وینا منل هم روا نه دي.

څکه په حدیث شریف کې راځي:(**لا طاعة لمخلوق فى معصية الخالق**) یعنې: د الله د نا فرمانۍ په صورت کې د مخلوق پیروي نشته.

او د مور او پلار د حقونو او ددوی شکر په ځای کولو کې حکمت دا دی چې مور د بچې د وجود په باقي ساتلو کې لوی کړاوونه او ستونزې زغمي، نه میاشتې یې په ګېډه ګرځوي حال دا چې ضعف او تکلیف یې ورځ په ورځ زیاتیږي او دا یې زغمي، بیا د پیدا کیدو نه وروسته یې ده ته د تي ورکولو زحمت تر دوه کالو پورې برداشت کړ او پلار یې هم د هیڅ ډول قربانۍ او ستونزو ګاللو کې ځان نه سپموي او شپه او ورځ دده په چوپړ کې لګیا دی.

خو کله چې اولاد د شرک په صورت کې د مور او پلار خبره نه مني نو باید د مور او پلار سره بد اخلاقي او یا د دوی سپکاوي و نه شي او اسلام یو د عدل قانون دی نو ځکه الله فرمايي:«وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا».

یعنې: په دین کې خو ته د دوی د شریعت خلاف خبره مه منه خو د دنیا په کارونو کې مثلاً د دوی جسماني خدمت یا مالي لګښت او نورو کې باید کمښت و نه شي او نه یې زړه آزار شي و لو که مور او پلار کافر هم وي.

او د حضرت لقمان د عقیدې او نصیحتونو په اساس په آسمان او ځمکه او ددوی دننه چې ده دي د دوی په ذره ذره د الله تعالی علم محیط او وسیع دی او په ټولو دده قدرت هم کامل دی یعنې هر څومره وړوکی او هر څومره لرې شي که هر څومره په تیارو او پردو کې وي د الله تعالی د علم او نظر نه نه شي پټیدای او الله یې حاضرولی شي.

**د کلماتو معنا**

**معصية:** ګناه.

**خالق: پیدا کوونکی** ( الله ﷻ )

**معروفاً:** نیکي او ښه سلوک.

**د لوست میتود:** په چوپتیا سره مطالعه، په زده کوونکو تشریح کول، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي د داسې پوښتنو په وړاندې کولو سره لکه:<br>- څوک کولای شي ووایي سوله زموږ لپاره څه اهمیت لري؟<br>- څوک ویلای شي تمسخر څه شی دی؟ |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک په غټ خط سره د ټولګي په تخته لیکي او د الله ﷻ په نوم سره نوی لوست پیل کوي. لومړی د لوست آیتونه د تجوید په مراعاتولو سره زده کوونکو ته لولي او وروسته زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې د لوست بغلي عنوانونه په تخته ولیکي، په لاندې ډول سره:<br>- د آیتونو ترجمه.<br>- لقمان څوک دی؟<br>- شرک د ظلم د بدترینو انواعو څخه دی.<br>- د مور او پلار سره نیکي، د والدینو اطاعت د الله ﷻ په اطاعت سره مقید ده.<br>وروسته ددې څخه له څوتنو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د بغلي عنوانونو د جملې څخه د یوه عنوان په هکله خپل معلومات بیان کړي.<br>وروسته ددې څخه ښوونکی لوست په لنډه او خلاصه ډول سره زده کوونکو ته شرح کوي.<br>ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې خپلې پوښتنې مطرح کړي، که چیرته هغوی ځواب ورنکړ خپله ښوونکی ورته ځوابونه وایي. وروسته بیا ښوونکی د درسي کتاب فعالیت په زده کوونکو عملي کوي. |
| ۵دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>- دغه لوست په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>- لقمان د الله ﷻ حکیم بنده و او باید خلک په خپلو کړو وړو او ویناوو کې د هغه له حکمت |

| | |
|---|---|
| ځخه استفاده وکړي.<br>- لومړی کس چې لقمان هغه ته نصیحت او پند وکړ دده زوی و.<br>- شرك لوی ظلم او نه بښونکې ګناه ده.<br>- انسان باید له خپل مور او پلار سره نیکي وکړي او د هغوی حقوق ادا کړي.<br>- د مور او پلار اطاعت مطلق نه بلکه مقید دی د الله جل جلاله په اطاعت پورې.<br>- انسانان باید د نورو د احسان په مقابل کې نیکي وکړي.<br>- د والدینو حقوق پر موږ واجب دي.<br><br>**ارزونه**<br>- څوك کولای شي لقمان حکیم معرفي کړي؟<br>- څوك کولای شي د لوست دوه فایدې ووایي.<br>- څوك کولای شي د مور او پلار د حقوقو په هکله خپل نظر څرګند کړي؟<br><br>**کورنی دنده**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست فواید او هغه څه چې یې زده کړي په خپلو کتابچو کې ولیکي او هغه حفظ کړي. | <br><br><br><br><br><br><br><br><br>۱۰دقیقې |

# اووه لسم لوست: د لقمان حکیم نصیحتونه خپل زوی ته (۲)

**مخ: ۶۶ – ۶۹**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست د آیتونو ترجمه په ښه توګه زده کړي.
- د خبرو کولو په آدابو ښه او سم پوه شي.
- د صبر او استقامت فایدې په ژوند کې زده او عمل پرې وکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې د حضرت لقمان وصیتونه د عمل د اصلاح په هکله دي او واجبه عملونه ډېر دي خو تر ټولو لوی او مهم کار لمونځ دی او د لمونځ د سمیدو سره د نورو عملونو سموالی هم تړلی دی ځکه الله تعالی فرمايي:«**إِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ**» نو ځکه یې په واجبو عملونو کې د لمانځه په ذکر کولو اکتفا وکړه.

«**يَا بُنَيَّ أَقِمِ الصَّلَاةَ**» یعنې ای زما زویکه! لمونځ قایم ساته او د اقامت الصلاۃ مطلب هم صرف لمونځ کول نه دي بلکې د لمانځه ټول ارکان او آداب په پوره شان سره په ځای کول دي، د وختونو پابندي او په لمانځه همیشوالی د لمانځه په اقامت کې داخلیږي.

د حضرت لقمان بل نصیحت د خلکو د اصلاح په هکله دی: اسلام یو ټولنیز دین دی د فرد د اصلاح سره د ټولنې اصلاح ددې نظام اهم جز دی په دې وجه د لمونځ په څیر د اهمې فریضې سره یې د امر بالمعروف او نهی عن المنکر د فریضې ذکر وفرمایه چې خلکو ته د نیکو کارونو دعوت ورکوه او د بدو کارونو څخه یې منع کوه،«**وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنكَرِ**» دا دوه فریضې دي: یوه د خپل ځان اصلاح او دوهمه د عامو وګړو او مخلوقاتو اصلاح ده او ددې دواړو فریضو په پابندۍ کې خاص کړاوونه او ستونزې ګالل شته دي، په دې ثابت قدم پاتې کېدل آسان نه دي خصوصاً د خلق د اصلاح لپاره د امر بالمعروف د خدمت صلّه په دنیا کې همیشه په دښمنیو او مخالفتونو سره حاصلیږي نو ځکه یې ددې نصیحت سره دا نصیحت هم وکړ چې«**وَاصْبِرْ عَلَى مَا أَصَابَكَ إِنَّ ذَلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ**» یعنې په دې کارونو کې چې تاته کوم تکلیف در رسیږي په دې د صبر او ثابت قدمی نه کار اخله.

د حضرت لقمان بل نصیحت د معاشرت او ژوندانه د آدابو په هکله دی: اول ورته وایي چې د خلکو سره د ملاقات او خبرو په وخت کې په اړولي مخ خبرې مه کوه، کومه چې د دوی نه د اعراض کولو او تکبر کولو نښه ده او د شریفانه اخلاقو نه خلاف ده.

بل په تکبر او غرور سره تلل دي، مطلب دا دی چې په ټولو عناصرو کې ځمکه الله متواضع او پرته جوړه کړې ده او ته ددې نه پیدایې، په دې باندې د ګرځیدو په وخت کې خپل حقیقت پیژنه، په غرور سره مه ګرځه کومه چې د متکبرانو طریقه ده، بل نصیحت یې ورته دا دی چې په رفتار کې د وسطې طریقې نه کار اخله ځکه تیز تګ د وقار خلاف دی او تیز تګ سره د مومن رونق ضایع کیږي، ځان یا نورو ته تکلیف رسول دي او سست تګ یا د ښځو عادت دی چې د شرم او حیا په وجه تیزې نشي تلای او یا د بیمارانو عادت دی چې په ورو تګ مجبور دي او په دې کې د الله نا شکري ده چې د روغتیا په حالت کې د بیمارانو په شان ځي.

او بل نصیحت د آواز ښکته ساتل دي د ضرورت په اندازه ځکه تر ټولو بد غږ د خره دی.

**د کلماتو معنا**

تنهی: منع کوي.

بالمعروف: په نیکۍ سره.

المنکر: بد کارونه.

**د لوست میتود:** تشریحي، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه:** درسي کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه په لاندې پوښتنو سره کوي:<br>- د مور او پلار اطاعت او فرمان قبلول څه وخت واجب دي؟<br>- د قرآني آیتونو په رڼا کې د لقمان حکیم د نصیحتونو په هکله خپل معلومات وواییځ. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د نوي لوست سرلیک چې (د لقمان حکیم نصیحتونه خپل زوی ته دي) په ښه غټ خط د تختې پر مخ لیکي او لوست د لوی رب په نوم پیلوي، لومړی د لوست آیتونه په ښه اواز او د تجوید په مراعاتولو سره تلاوت کوي، او بیا دوو تنو زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې دغه مبارک آیتونه قرائت کړي.<br>ښوونکی یوه تن زده کوونکي ته دنده ورکوي چې د لوست متن په لوړ اواز سره ولولي او په دې وخت کې ښوونکی د لوست بغلي عنوانونه او مهم او کلیدي ټکي د تختې په مخ لیکي او وروسته لوست په لنډه توګه زده کوونکو ته تشریح کوي او بیا د دووتنو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او په خپلو اسلوبو او طریقې سره لوست خپلو ټولګیوالو ته تشریح کړي، ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي او ددوې څخه غواړي چې ځینې پوښتنو ته پخپله ځوابونه ووایي.<br>**ارزونه**<br>- څوک کولای شي د لقمان حکیم پنځه نصیحتونه او پندونه خپل زوی ته چې د نن ورځې لوست کې مو لوستلي ووایې؟<br>څوک ویلای شي د صبر او استقامت په هکله خپل نظر څرګند کړي؟<br>څوک کولای شي هغه حدیث شریف چې په دې لوست کې ذکر شوی په یادو ووایي؟ |
| ۱۰دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>دغه لوست په لاندې ټکو کې لنډیږي:<br>- لمونځ ادا کول پر موږ فرضي امر دی.<br>- لمونځ باید د نیت په اخلاص سره ادا شي.<br>- هر مسلمان مکلف دی چې امر په نیکۍ (معروف) او نهی له بدۍ (منکر) وکړي.<br>- انسان د تکبر او غرور څخه منع شوی دی.<br>- انسان باید په اوچت اواز او زړه بدوونکې خبرې ونکړي.<br>- انسان باید د الله ﷻ د نعمتونو په مقابل کې د هغه شکر پرځای کړي.<br>- صبر او تحمل د ستونزو په وړاندې د مسلمان د اوچتو اخلاقو څخه دی.<br>- مسلمان باید د بل مسلمان په وړاندې په ښه رویه او پراخه تندي چلند وکړي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست فواید او هغه څه چې یې زده کړي په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا هغه حفظ کړي. |

## اتلسم لوست: له بدګمانۍ، غیبت او عیب پلټلو څخه ځان ژغورل

**مخ:** ۷۰ – ۷۴

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د آیتونو ترجمه په ښه توګه یاده کړي.
- د سختو لغتونو په معنا پوه شي.
- د غیبت او بدګمانۍ څخه ځانونه وژغوري.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

دا لوست هم د ژوند د آدابو د حقونو په هکله دی او په ډیرو احکامو مشتمل دی، په دې کې یې هم درې شیان حرام کړي دي:

**اول: بدګمان. دویم: تجسس یعنې د یو پټ عیب او راز ښکاره کول. دریم: غیبت.**

یعنې د یو غیر حاضر سړي په هکله څه داسې خبره کول چې که هغه واوري نو بده پرې لګیږي که څه هم هغه رښتوني خبره وي، ځکه غلط الزام لګول خو تهمت دی او هغه خو مستقل حرام دی او د موجودګۍ په صورت کې خفګان راوستونکې خبره غیبت نه دی خو په لمزکې داخل دی چې ددې حرمت هم په آیت ثابت دی اوله خبره ظن(ګمان) دی، دظن معنی غالب ګمان دی، قرآن وایي د ډیرو ګمانونو څخه ځان ساتئ بیا یې ددې وجه وښوده چې ځینې ګمانونه ګناه وي، ددې څخه معلومه شوه چې هر ګمان ګناه نه وي.

قرطبی وایي چې دلته د ظن نه مراد تهمت لګول دي یعنې په یوه سړي د څه قوي دلیل نه پرته څه الزام، عیب یا ګناه لګول. امام ابوبکر جصاص رحمه الله په احکام القرآن کې د ظن په هکله یو جامع تفصیل لیکلی چې ظن څلور ډوله دی حرام، مامور به او واجب، مستحب او مباح.

حرام ظن دا دی چې په الله تعالی بد ګماني ساتي چې هغه به ماته عذاب راکړي یا به مې په غمونو کې ساتي یا په بله وینا د الله د رحمت او بښنې څخه ناهیلی وی، په حدیث کې راځي(لا یموتن احدکم الا و هو یحسن الظن بالله)، یعنې: تاسو څخه دې هیچاته پرته له دینه مرګ را نشي چې دده په الله ښه ګمان وي. په بل حدیث کې راغلي چې الله تعالی فرمایي(انا عند ظن عبدی)، یعنې: زه د خپل بنده سره هغه سلوک کوم، کوم چې هغه په ما ګمان لري. اوس ده ته اختیار دی چې په ما څنګه ګمان غواړي ودې ساتي.

نو له دې نه معلومه شوه چې په الله نیک ګمان ساتل فرض دي او بد ګماني حرامه ده، دارنګه په یو مسلمان چې په ظاهره نیک ښکاري دده په هکله پرته له څه قوي دلیل څخه بد ګماني حرامه ده.

د ابو هریره نه بل حدیث نقل شوی فرمایي:(ایاکم و الظن فان الظن اکذب الحدیث)یعنې: د ګمان څخه ځان ساتئ ځکه ګمان دروغجنه خبره ده او دا په اتفاق سره په یو مسلمان پرته له څه قوي دلیل نه بدګماني کول دي او کوم کار چې داسې وي چې په هغې کې په یو جانب باندې عمل کول شرعاً ضروري وي او د هغه په هکله په قرآن او حدیث کې څه واضح دلیل نه وي هلته په غالب ګمان عمل کول واجب دي، هکذا د قبلې د معلومولو په هکله که څوک نه وي نو په غالب ګمان عمل کول واجب دي.

مباح ګمان لکه د لمانځه په رکعتونو کې شک راشي چې درې مې وکړل یا څلور، نو په خپل غالب ګمان عمل کول جائز دي او که هغه غالب ګمان پریږدي په یقیني کار عمل وکړي یعنې رکعتونه درې مقرر کړي څلورم پسې وکړي نو دا هم جائز دی.

او مستحب ګمان دا دی چې په هر مسلمان نیک ګمان ساتي په دې ثواب حاصلیږي.
قرطبی فرمايي: چې د قرآن کريم لارښوونه ده:«**لَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنفُسِهِمْ خَيْرًا**».
په دې آيت کې په مؤمنانو د نيک ګمان تاکيد راغلی دی او چې کومه مشهوره ده چې(ان من الحزم سوء الظن).
يعنې: د احتياط خبره دا ده چې په هر سړي بد ګماني ساتئ، ددې مطلب دا دی چې معامله داسې کوئ لکه د بد ګمانی په صورت کې، کیدای شي چې له قوي اعتماد پرته خپل څه شی چاته نه حواله کوي داسې نه چې غل يې ګڼي او سپکاوی يې کوي.
بل په دې لوست کې د تجسس يعنې د چا د عيب لټون دی، په دې کې دوه قرائتونه دي يو "لا تجسسوا" په جيم سره بل "لا تحسسوا" په حاء سره او په صحيحينو کې د ابو هريرهﷺ څخه په دواړو کې فرق بيانوي چې تجسس په جيم سره د داسې کار لټون او تلاش ته ويل کيږي کوم چې خلکو دده نه پټ کړی وي او تحسس په حاء سره مطلق د تلاش او لټون په معنا راځي او د ځينو په وينا دواړه په يوه معنا دي
د يوسف په سورت کې:«**فَتَحَسَّسُواْ مِن يُوسُفَ وَأَخِيهِ**» په دې معنا کې راغلی دی: او د آيت معنا دا ده چې د چا مسلمان هغه عيب کوم چې ظاهر نه وي د هغې لټون او تلاش کول جائز نه دی. په بيان القرآن کې راځي چې د چا خبرو ته پټ ودريدل يا ځان قصداً ويده جوړول او خبرې اوريدل هم په تجسس کې داخل دي، البته که د څه ضرر رسيدو احتمال وي او د خپل يا بل مسلمان د حفاظت په غرض سره ضرر رسوونکي خبرې واوري او د هغه د ارادو نه ځان په پټه خبر کړي، نو جائز دي.
دريم شی غيبت دی، په غيبت سره د يو مسلمان آبرو توئيږي او د مسلمان توهين او تحقير يې د غوښو خوړو په مثل او مشابه ګرځولی دی، که دغه سړی ده ته مخامخ وي نو داسې ده لکه د ژوندي انسان غوښې چې شکوي او خوري يې، ديته قرآن د لمز لفظ سره تعبير کړی دی او دا حرام دی.
او کوم سړی چې غائب وي، د هغه پسې شا خبره کول چې د هغه په آبرو کې خلل راشي او د هغه سپکوالی وشي، دا داسې ده لکه د مړ انسان غوښې چې وخوړی شي لکه د مړي په غوښو خوړلو سره چې مړي ته څه تکليف نه رسيږي داسې دا غائب ته تر څو پورې چې ددې غيبت نه خبر نه وي ده ته هم څه تکليف نه وي.
هدف دا چې په چا پسې شا بد ويل څه د بهادرۍ کار نه دی بلکې په کار دا ده چې د خپل مسلمان ورور څخه دفاع وکړي او که د دفاع وس يې نه وي نو لږ تر لږه دې غيبت نه اوري ځکه د غيبت قصداً اوريدل هم داسې دي لکه غيبت کول.
په دې بل آيت کې د انساني او اسلامي حقوقو د معاشرې او ژوندانه د آدابو او لارښوونې په سلسله کې يو جامع تعليم د انساني مساوات دی، چې يو انسان د بل نه کم يا رذيل مه ګڼئ او په خپلې کورنۍ او نسب يا مال او دولت او داسې نورو باندې فخر او وياړ مه کوئ؛ ځکه دا شيزونه په حقيقت کې د فخر او وياړ لپاره نه دي، بيا ددې تفاخر څخه نفرت او دښمني جوړيږي، نو ځکه فرمايي چې ټول انسانان د يو مور او پلار د اولاد کيدو په حيثيت سره وروڼه وروڼه دي او کوم فرق چې د انسانانو ترمنځ دی هغه د فخر لپاره نه بلکې د پيژندګلوۍ لپاره دی او د الله په وړاندې تر ټولو عزتمن تر ټولو ډير متقي دی.

**د کلماتو معنا**

ظن: ګمان.

تجسس: د پټ راز او عيب پلټل.

**د لوست ميتود:** تشريحي، يوکسيز، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د معتبرو تفاسیرو کتابونه.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی له احوال پوښتنې او کورنۍ دندې کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>- څوک کولای شي د لقمان حکیم څلور نصیحتونه او پندونه ووايي؟<br>- څوک د خبرو د آدابو په هکله معلومات ورکولی شي؟<br>ښوونکی د نوي لوست سرلیک په غټ خط په تخته لیکی، وروسته وروسته بیا د یو تن زده کوونکي څخه غواړي چې د لوست متن په اوچت آواز سره ولولي او نور زده کوونکي ورته غوږ نیسي. |
| ۲۵دقیقې | او بیا څو تنه زده کوونکي ټاکي او ورڅخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او یو عنوان په خپله طریقه او اسلوب سره تشریح کړي.<br><br>**ارزونه**<br>- څوک ویلای شي چې د بهترۍ او فضیلت معیار څه شی دی؟<br>- څوک کولای شي هغه حدیث شریف چې حضرت ابو هریره‌رضي الله عنه روایت کړی د تجسس، بدګمانی، غیبت او دروغو د منع په هکله له یاده ووايي؟<br>- څوک کولای شي غیبت تعریف کړي؟<br>- څوک کولای شي دوه فایدې د لوست د فوایدو څخه بیان کړي؟ |
| ۱۰دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>دغه لوست په لاندې ټکو کې لنډیږي:<br>د بهترۍ او فضیلت معیار د انسانانو په منځ کې یوازې په تقوی او پرهیزګارۍ سره دی.<br>بدګماني یو باطل او ناروا عمل دی.<br>مبارکو آیتونو موږ د تجسس او غیبت څخه منع کړي یو.<br>غیبت کول د مسلمان ورور د غوښې خوړلو په څیر دی.<br>اصل د ټولو انسانانو یو دی چې ټول د یوه پلار او مور څخه پیدا شوي دي.<br>د انسانانو د متنوع او رنګا رنګ خلقت څخه هدف تعارف، تقوی او پیژندګلوي ده نه بهتري او فضیلت.<br><br>**کورنۍ دنده**<br>ښوونکی د درسي کتاب څخه کورنۍ دنده زده کوونکو ته ورکوي. |

## نولسم لوست: کورونو ته د ننوتلو آداب.

**مخ: ۷۵**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د سورت (نور) ۲۷ – ۲۹ آیتونو تلاوت او منطقي تحلیل وکړای شي.
- د قرآني کلماتو مفاهیمو ته د آیتونو د اجمالي احکامو سره سم ارتباط ورکړي.
- د هستوګنې کورونو او غیر هستوګنې (خالي) کورونو ته د ننوتلو آداب زده کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د ژوندانه او معاشرې د قرآني آدابو یو اهم باب د چا لیدو ته چې ورځئ نو مخکې له کور داخلیدو نه اجازه اخلئ د افسوس خبره دا ده چې اسلامي شریعت ددې معاملې څومره اهتمام کړی چې په قرآن کریم کې ددې مفصل احکام نازل شوي دي. او نبي کریمﷺ هم په خپله وینا او عمل سره ددې تأکید فرمایلی دی، خو سره له دې هم دننني زمانې مسلمانان ددې نه غافله دي، تعلیم لرونکي نیکان خلك هم دیته څه ګناه نه وایي.

**د اجازې غوښتلو حکمتونه او مصلحتونه:** الله تعالی هر انسان ته چې کوم د اوسیدو ځای ورکړی دی برابره خبره ده چې خپل ملکیت یې وي یا په کرایه او داسې نورو طریقو وي، په هر حال دده د استوګنې ځای دی او د مسکن اصلي غرض سکون او راحت دی، قرآن کریم داسی اشاره ورته فرمایي:«**جَعَلَ لَكُم مِّن بُيُوتِكُمْ سَكَنًا**».

یعنې: الله تعالی تاسو ته په کورونو سره ستاسو د سکون او راحت سامان درکړو. او دا سکون او راحت هلته باقي پاتې کیدای شي چې انسان د بل چا د مداخلت نه پرته په خپل کور کې د خپل ضرورت مطابق په آزادۍ سره کار او آرام وکړی شي، په دې آزادۍ کې خلل غورځول د کور اصل مصلحت لره فوت کول دي چې لوی آزار او تکلیف دی، اسلام هر چا ته ناحق تکلیف رسول حرام کړي دي.

د اجازې غوښتلو په احکامو کې یو لوی مصلحت د خلکو په آزادۍ کې د خلل غورځولو او دوی ته د آزار رسولو نه بچ کیدل دي کوم چې د شریف انسان عقلي فرض هم دی.

– دویم مصلحت پکې په خپله ددغه سړي دی کوم چې د چا د لیدنې لپاره د هغه خوا ته ورغلی دی، چې کله دی په اجازې سره د شریف انسان په شان حاضر شي نو مخاطب به هم دده خبره په قدر او عزت سره واوري او که څه حاجت یې وي نو د هغه پوره کولو ته به هم د هغه زړه میلان وکړي، په خلاف ددې چې په وحشیانه توګه پرته له اجازې په چا مسلط شي نو مخاطب به ده لره یو ناڅاپي بلا وګڼي، د وخت دفع کولو نه به کار واخلي که د خیر خواهۍ څه جذبه یې په زړه کې هم وي خو مړاوي به شي او یوه مسلمان ته به آزار هم ورسوي.

– دریم مصلحت پکې د فواحشو او بی حیاییو منع کول دي چې بې اجازته د چا په کور کې په داخلیدو سره دا هم احتمال دی چې په غیر محرمو ښځو نظر پریوځي او شیطان یې په زړه کې څه مرض پیدا کړي او د همدې مصلحت په وجه قرآن کریم د زنا او قذف او نورو احکامو پسې متصل د اجازې احکام نازل کړل.

– څلورم مصلحت دا دی چې انسان ځنې وختونه د خپل کور په تنهائی کې څه داسې کار کوي کوم چې نورو ته یې خبریدل مناسب نه ګڼي که کوم سړی بې اجازې کور ته راشي نو په پټو رازونو به خبر شي او د چا په پټو رازونو خبرتیا ګناه او د آزار رسولو سبب دی.

لنډه دا چې اجازه غوښتل ډیر ضروري کار دی حتی په حدیث کې راځي: عطا بن یسارؓ روایت کوي چې یو سړی د نبي کریمﷺ په حضور کې حاضر شو او پوښتنه یې وکړه چې آیا زه د خپلې مور خواته د تلو په وخت کې

هم اجازه غواړم؟ نبي كريمﷺ ورته وفرمايل: چې بلې، اجازه غواړه، دغه سړي وويل: يا رسول الله زه د خپلې مور سره په كور كې اوسم، نبي كريمﷺ وفرمايل: بيا به هم اجازه غواړې، بيا يې عرض وكړ يا رسول الله! زه هر وخت د هغې په خدمت كې اوسيږم، نبي كريمﷺ وفرمايل: بيا هم د هغې نه د اجازت اخستو نه پرته كور ته مه ځه! آيا ته دا خبره خوښوې چې خپله مور لغړه ووينې؟ هغه وويل نه، نبي كريمﷺ وفرمايل: چې په همدې وجه اجازه اخستل په كار دي ځكه دا احتمال شته چې هغې په كور كې په څه ضرورت سره ستر سپړودلی وي.
لنډه دا چې په خپله بې بي داخليدل هم اجازه غوښتل مستحب كار دی څو خپله بې بي په داسې حالت كې و نه ويني چې دده خوښ نه وي.

**د اجازې مسنونه طريقه:**

يو استيذان دی يعنې اجازه غوښتل څو د داخليدو نه وړاندې په اجازه غوښتلو كې مخاطب مانوس شي يعنې پوهه شي چې فلانی دی او ويره يې وركه شي.
دوهم كار دا دی چې كور والو ته سلام كوئ، يعنې اول اجازه حاصلول او كله چې كور ته ننوځئ نو سلام كوئ.
او ماوردی رحمه الله فرمايي: چې كه د اجازت اخستو نه وړاندې د كور په يو سړي نظر پريوځي نو اول دې سلام وكړي او بيا دې اجازه وغواړي ورنه اول د اجازه اخلي او كله چې كور ته ورننوځي نو سلام دې وكړي، اما د عامو روايتونو د حديثونو څخه چې كومه مسنونه طريقه معلوميږي هغه دا ده چې لومړی دې له بهر نه سلام وكړي: "السلام عليكم" له دې وروسته ته دې خپل نوم واخلي او ودې وايی چې فلانی سړی داخليدل غواړي.
حضرت ابو هريرهرضي الله عنه په بخاري كې روايت كړئ چې كوم سړی د سلام نه مخكې اجازه وغواړي ده ته اجازه مه وركوئ ځكه ده مسنونه طريقه پريښوده.
د بنی عامر يو سړي د نبي كريمﷺ نه داسې اجازه وغوښته چې د بهر نه يې وويل: اَاَلجُ؟ آيا زه دننه درشم؟ نو نبي كريمﷺ خپل خادم ته وويل چې دا سړی دننه راتلو د اجازې طريقه نه پيژني ورشه ده ته طريقه وښيه چې داسې ووايه: السلام عليكم اَادخُلُ يعنې آيا زه دننه راتلی شم؟ خادم بهر نه ؤ تللی چې هغه په خپله د نبي كريمﷺ كلمې واوريدې او دغه شان يې وويل: السلام عليكم اَادخُلُ نو نبي كريمﷺ ورته دننه راتلو اجازه وركړه.
دا هم د يادولو وړ خبره ده چې په ځواب كې دې داسې نه وايي چې زه يم، په دې كلمې سره پيژندل ګران دي.
حضرت مغيره بن شعبهرضي الله عنه د يوه سړي په ځواب كې چې هغه وويل زه يم، وفرمايل: زما په دوستانو كې يو هم داسې سړی نشته چې د هغه نوم أنا(يعنې زه يم) وي.
او تر دې ناكاره طريقه دا ده چې دننه څخه آواز وشي چې څوك يې او دا بيرون سړی چپ شي نو هغه ته زيات د تشويش او انديښنې سبب شي.

**د كلماتو معنا**

بيوتاً: جمع بيت، كورونه.
تسلموا: سلام ووايئ.

**د لوست ميتود:** ډله ييزه مباحثه، سوال او ځواب، رول لوبول.

**د لوست مرستندويه توكي:** د تفسير شريف كتابونه، د قرآني كلماتو لوحی.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د السلام علیکم ویلو سره ټولګي ته داخلیږي او د پوښتنې، حاضري اخیستلو، د زده کړې لپاره د ارامې فضا برابرولو څخه وروسته په لنډو پوښتنو سره د تیر لوست ارزونه کوي او د نوي لوست ارتباط او تړاو د تیر لوست سره واضح کوي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د اعوذ بالله او بسم الله په ویلو سره د لوست ۲۷ مبارک آیت په ښکلي او لوړ آواز سره تلاوت کوي او بیا دوو تنو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې ۲۸ او ۲۹ مبارک آیتونه هر یو په خپل وار سره تلاوت کړي او ښوونکی د دوی لفظي او تجویدي غلطیانې او اشتباهات اصلاح کوي.<br>محترم ښوونکی د تفاسیرو او علمي منابعو او مراجعو نه په استفادې سره د (نور) سورت په احکامو او اهدافو مختصره روښنايي اچوي او همدارنګه د اجتماعي ژوند، سلوك او د کورونو داخلیدو آداب، پردي کور ته مسکونه وي (چې څوك پکې اوسیږي) او که غیر مسکونه وي (خالي)، دا ټول په لنډه او مختصره توګه د آیتونو په رڼا کې بیانوي او وضاحت ورکوي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې د لوست متن یو ځل په چوپتیا سره ولولي او بیا په دوه کسیزه ډول په خپلو منځو کې د مبارکو آیتونو د معلوماتو په هکله بحث او مناقشه کوي وروسته د ټولو زده کوونکو په استازیتوب دوه کسان ټاکل کیږي او د لوست د آیتونو مثبت ارشادات بیانوي، محترم ښوونکی د زده کوونکو څخه غواړي چې په خپله خوښه دوه تنه د مسکونه او غیر مسکونه کورونو د ننوتلو آداب او طریقه په ټولګي کې د تمثیل په ډول ادا کړي.<br>محترم ښوونکی د لوست سخت او مشکل کلمات د تختې پر مخ لیکي او قرآني لوحې که چیرته له دوی سره موجودې وي نو د هغو څخه په استفادې سره په ډیره ښه او صمیمانه توګه د معنا او حل کولو په باره کې د زده کوونکو په مشارکت بحث کوي او صحیح ځواب د تختې په مخ لیکي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه**<br>محترم ښوونکی د خپل اطمینان په خاطر د درسي کتاب د سوالونو نه په استفادې سره زده کوونکي ارزوي او پوښتنې ورڅخه کوي.<br>**د لوست لنډیز**<br>دغه لوست په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>- هیڅ مسلمان باید د اجازې پرته د چا کور ته داخل نه شي ترڅو چې د کور څښتن ورته اجازه ونکړي او وروسته له اجازې څخه باید د سلام په ویلو کور ته داخل شي.<br>- مسکن او کور خاص محرمیت لري هغه کورونه چې په هغه کې څوك نه وي چې د داخلیدو اجازه وکړي نو باید ور داخل نه شي.<br>- هغه اماکن، کورونه، محلات، دکانونه، مارکیټونه، هوتل او داسی نور چې د هستوګنې او اوسیدو په خاطر نه وي او د محتاجانو د ضرورت د رفع کولو په خاطر جوړ شوي وي، داخلیدل ورته پرته د اجازې روا دي او کوم حرج نه لري. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>محترم ښوونکی برسیره پردې چې د درسي کتاب څخه زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي د هغوی څخه غواړي چې د لوست پیغام خپلو دوستانو ته ورسوي. |

## شلم لوست: د شرابو او قمار وهلو حراموالی

**مخ: ۷۹**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د شرابو او قمار قطعي تحریم د قرآني آیتونو په رڼا کې زده کړي.
- د سورت مائده ۹۰ – ۹۱ آیتونو شأن نزول چې تحریم د شرابو او قمار دی او د هغو په شرعي حکم پوه شي.
- د شرابو او قمار صحي، اقتصادي او اجتماعي ضررونه نورو ته بیان کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې آیتونو کې ددې خبرې ښودل منظور دي چې د کایناتو مالک دا ټول کاینات د انسان د خدمت لپاره پیدا کړي دي او هر یو شی یې د انسان په خاص خدمت باندې لګولی او انسان یې ددې کایناتو مخدوم جوړ کړی دی، په انسان یې صرف یوه پابندي لګولې ده چې هغه د مخلوق نه د نفع اخستو کوم حدونه ټاکلي دي د هغو نه به وړاندې نه تیریږئ، کوم شیان چې یې د انسان لپاره پاک او حلال کړي دي د هغو نه ځان ساتل بی ادبي او نا شکري ده او د کومو شیانو استعمال چې یې حرام کړی دی په دې کې خلاف ورزي کول نا فرماني او بغاوت دی، د بنده کار دا دی چې د حقیقي مالک د هدایت مطابق د هغه د مخلوقاتو استعمال وکړي ددې نوم عبدیت یعنې بندګي ده.

د لوست په لومړني آیت کې د شرابو، قمار او بت پرستی او د قمار د غشو د حراموالي بیان دی. په دې آیت کې څلورو شیانو ته رجس ویل شوی، رجس هغه ګنده شیانو ته ویل کیږي د کوم نه چې د انسان په طبیعت کې کرکه او نفرت پیدا کیږي، دا څلور ځیزونه داسې دي چې که انسان لږ هم برابر عقل او سلیم طبیعت ولري نو په خپله به ددې شیانو څخه کرکه او نفرت ولري.

**ازلام:** په دې څلورو شیانو کې یو أزلام دي چې د زلم جمع ده، ازلام غشو ته ویل کیږي. په عربو کې د خسنې (پچې) اچولو په توګه د قمار رسم جاري ؤ مثلاً لسو کسانو به په شریکه یو اوښ ذبح کړ بیا به یې د هغه د غوښې د تقسیم لپاره په ځای ددې چې لس حصې یې کړي په هغه کې به یې داسې قمار وهلو چې په لسو غشو کې به یې په اوه غشو د څه ټاکلو برخو نښې جوړې کړې وې په چا یوه په چا دوه یا دری او دری غشي به یې ساده پاتې کړي وو.

دا غشي به یی په تیرکش کې واچول او خوځول به یې بیا به یې د یو یو شریک لپاره یو یو غشی له تیر کش نه راویستلو او د څومره برخو غشي چې به د چا په نوم راووتل دوی به ددغو برخو مستحق ګڼل کیده او د چا په نوم به چې ساده غشی راووتو هغه به د برخې نه محروم ؤ لکه نن سبا چې ډیر ډولونه د لاترۍ په طریقه په بازارونو کې جاري دي، دغه شان داسې د پچو قمار د قرآن کریم له مخې حرام دی.

**انصاب:** د نُصُب جمع ده، داسې شي ته نصب ویل کیږي چې د عبادت لپاره درول شوي وي خواه بت وي یا ونه یا تیږه او داسې نور.

**د شرابو او قمار بدني او روحاني فسادونه:**

د آيت د شأن نزول او وروستی آيت نه معلوميږي چې په دې آيت کې اصل مقصود ددوه شيانو د حراموالي او فسادونو بيانول دي يعنې شراب او قمار، انصاب يعنې د بتانو ذکر ددې سره په دې وجه ذکر شوی چې اوريدونکي پوه شي چې د شرابو او قمار معامله داسې سخت جرم دی لکه بت لمانځنه.

د ابن ماجه په يوه حديث کې راځي:(شارب الخمر کعابد الوثن). يعنې: د شرابو څکونکی داسې مجرم دی لکه د بت عبادت کوونکی.

نچوړ د خبرې دا دی چې دلته د شرابو او جوارۍ د سخت حراموالي او د دوی د روحاني او جسماني خرابو بيان دی، اول يې روحاني او معنوي خرابي د«**رِجْسٌ مِّنْ عَمَـلِ الـشَّيْطَانِ**» په الفاظو کې بيان شويده مطلب يې دا دی چې دا شيان د سليمه فطرت په نزد ګنده، پليت او د نفرت وړ شيان او د شيطان جالونه دي چې په دې کې د اخته کيدو نه وروسته انسان په بې شماره فسادونو او هلاک کوونکو خرابو کندو کې غورځوي، ددې روحاني فسادونو فرمايلو نه پس يې حکم وکړ«**فَـاجْتَنِبُوهُ**» يعنې هرکله چې دا شيان داسې وي نو ددې نه ځان وساتئ او پرهيز ترې وکړئ.

په پای کې فرمايي:«**لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ**» يعنې: ددنيا او آخرت کاميابی په دې کې ده چې ددې شيانو نه ځان وژغورئ.

په دوهم آيت کې يې د شرابو او قمار ددنيوي او ظاهري فسادونو بيان داسې وکړ يعنې شيطان دا غواړي چې تاسو په شرابو او قمار کې اخته کړي څو ستاسو په منځ کې بغض او دښمني واچوي.

ددې آيتونو نزول هم دداسې واقعاتو په باره کې شوی دی چې د شرابو په نشه کې داسې حرکتونه صادر شوي وو چې د يو او بل په منځ کې د کينې او حسد او بيا د جنګ او جګړې سبب جوړ شول.

همدارنګه په قمار کې هم چې کله قمار بايلوي د همدا سو دښمنيو لامل ګرځي. حضرت قتاده رحمه الله ددې آيت په تفسير کې فرمايي: چې د ځينو عربو عادت ؤ چې په قمار کې به يې خپل اهل او عيال او مال او سامان هر څه بايلودل انتهايي د غم او تکليف ژوند به يې تيرولو.

د آيت په پای کې يوه بله خرابی په دې الفاظو سره بيان شوې ده«**وَيَصُدَّكُمْ عَن ذِكْرِ اللّهِ وَعَنِ الـصَّلاَةِ**» يعنې: دا شيان تاسو د الله تعالی د ياد او لمانځه څخه غافله کوي.

دا خرابی په ظاهره روحاني او د آخرت خرابي ده چې ددنيوي خرابی نه وروسته يې مکرره ذکر کوي اشاره ديته ده چې اصل قابل د نظر او قابل د فکر هغه ژوند دی کوم چې هميشه پاتې کيدونکی دی، د هوښيار په وړاندې ددغه ژوند ښايسته کول په کار دي او ددغه ژوند د خرابيدو نه ويره کول په کار دي د دنيوي څو ورځو ژوند ښايسته کول څه د فخر او وياړ شی نه دی او نه يې خرابي زياته د غم کولو قابله ده ځکه ددې دواړه حالتونه په يو څو ورځو کې ختميدونکي دي.

په پای کې فرمايي: هر کله چې دا ټولې خرابۍ ستاسو په علم کې راغلې نو اوس به هم ددې نه منع شئ؟

**د کلماتو معنا**

الخمر: هر هغه څه چې عقل زايل کوي او نشه راوړي.

**العداوة:** دښمني.

**د لوست میتود: توضيحي يا مباحثوي، ډله ييز کار.**

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، رنګه پوسترې او د مخدره موادو چارتونه.

**د لوست بهیر**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، حاضري اخیستنې او کورنۍ دندې کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي چې د کورونو د ننوتلو آداب دي او د نوي لوست تړاو د تیر لوست سره چې د شرابو او قمار حرمت دی بیانوي چې دغه دواړه عملونه په جامعه کې بد عملونه دي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی یوه زده کوونکي ته هدایت ورکوي چې د (المائده) سورت ۹۰ – ۹۱ مبارک آیتونه د قرائت په لهجه په ښه آواز سره تلاوت کړي او بیا د لوست کلمات او لغتونه په تخته لیکي او د زده کوونکو په مرسته او مشارکت سره یې معنا کوي چې وروسته ددې مبارکو آیتونو په ترجمه او تفسیر پیل کوي او د آیتونو د شأن نزول په هکله چې د شرابو، قمار او فال اچولو د تحریم په باره کې چې مشرکانو به د خپل بخت معلومولو په خاطر څو بد فالي او نیک فالي معلومه کړي، د لکچر په طریقه زده کوونکو ته بیانوي او وضاحت ورکوي وروسته بیا د زده کوونکو څخه غواړي چې په مناسبو ډلو سره خپلو کې د شرابو، قمار، فال اچولو او د بتانو د عبادت په باره کې بحث او مناقشه وکړي او په آخر کې د هرې ډلې څخه یو تن د بحث نتیجه خپلو ټولګیوالو ته بیانوي.<br>محترم ښوونکی ضعیف زده کوونکي تشویق کوي او ورسره مرسته کوي ترڅو د لوست په هکله خپل نظریات او په هغه څه چې پوه شوي په ښه جرأت سره بیان کړي او د دوی پوښتنو ته په ډیره نرمه لهجه ځواب وویل شي د شرابو، قمار او ټولو مخدره موادو اضرار انساني تلفات او هغه خطرناک مرضونه چې ورڅخه پیدا کیږي چې نن ورځ یې په نړۍ کې ګورو او مشاهده کوو یې بیان او په ځیر سره وڅیړل شي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه**<br>محترم ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو سره ارزوي.<br>**د لوست لنډیز**<br>- د (مائده) سورت په مدینه منوره کې نازل شوی<br>- په ۹۰ – ۹۱ آیتونو کې الله ﷻ مؤمنانو ته خطاب کړی او د شرابو، قمار، فال اچونه، د بتانو عبادت دا ټول حرام ګرځولي دي<br>- ددې شیانو استعمال د اسلام په دین او شریعت کې جداً ناروا او حرام دی، نو باید ځان ورڅخه وژغورل شي.<br>- د آیتونو د نزول حکم عام دی.<br>- د شرابو، قمار او هر نیشه راوړونکي څیز استعمال چې عقل زایلوي حرام دی، او دغه شیان ټول د شیطاني اعمالو څخه دي نو باید په کلکه ورڅخه ډډه وشي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>د درسي کتاب د هدایت سره سم زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. |

# یوویشتم لوست: په عدل او احسان امر کول

**مخ: ۸۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د (نحل) سورت د (۹۰ – ۹۱) آیتونو ترجمه او تفسیر په سمه توګه زده کړي.
- عدل، احسان، وفا په عهد او وعدو وپیژني او هغه د خپل ژوند مهم جزء او برخه وګڼي.
- د دعوت په لار کې باید اسلامي لارښود، امر په معروف او نهی د منکر څخه خپل مسؤولیت وګڼي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

دا آیت د قرآن کریم په ټولو آیتونو کې ډیر جامع آیت دی، په دې آیت کې یې پوره اسلامي تعلیمات په څو الفاظو کې ځای کړي دي، په دې وجه د سلفو صالحینو د مبارکې زمانې څخه تر ننه پورې دا دستور را روان دی چې د جمعې او اخترونو د خطبو په آخر کې همدا (۹۰) آیت تلاوت کیږي.

حضرت عبدالله بن مسعودﷺ فرمايي چې د قرآن کریم د ټولو نه جامع ترین آیت په نحل سورت کې دا آیت دئ:«**إِنَّ اللّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالإِحْسَانِ وَإِيتَاء ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاء وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ**».

او حضرت اکثم بن صیفیﷺ ددې آیت له وجې په اسلام کې داخل شو، امام ابن کثیر د حدیثو د حافظ ابو یعلی په کتاب معرفة الصحابه کې په سند سره دا واقعه نقل کړیده چې اکثم بن صیفی د خپل قوم سردار ؤ کله چې ده ته د نبي کریمﷺ د نبوت دعوه او د اسلام د اشاعت خبر ورسیده نو اراده یې وکړه چې د نبي کریمﷺ په خدمت کې حاضر شي خو د قوم خلکو ورته وویل چې ته زموږ د ټولو مشر یې ستا په خپله تلل مناسب نه دي، اکثم وویل چې ښه ده نو د قبیلې دوه تنه سړي غوره کړئ چې هلته لاړ شي او د حالاتو پته ولګوي او ما ته ووایي، دا دواړه د نبي کریمﷺ په خدمت کې حاضر شول او عرض یې وکړ چې موږ د اکثم بن صیفی د طرف نه د خبرو معلوملو لپاره راغلي یو، د اکثم دوه سوالونه دا دي: من أنت و ما أنت؟ ته څوک یې او څه یې؟ نبي کریمﷺ وفرمایل: چې د اول سوال ځواب دا دی چې زه محمد د عبدالله زوی یم. او د دویم سوال ځواب دا دی چې زه د الله تعالی بنده او د هغه رسول یم، ددې نه وروسته یې د نحل سورت ددې آیت تلاوت تر هغه پورې کاوه چې د اکثم قاصدانو ته یاد شو قاصدان چې واپس راغلل ورته ویې ویل چې موږ اول سوال کې دا غوښتل چې دده نسب معلوم کړو خو ده دیته زیاته توجه ونکړه صرف د پلار په نوم بیانولو یې اکتفا وکړه مګر کله چې موږ د نورو خلکو نه دده د نسب تحقیق وکړ نو معلومه شوه چې دی د ډیر لوی شریف نسب سړی دی. او بیا قاصدانو وویل چې محمدﷺ موږ ته یو څو کلمې اورولې دي هغه موږ بیانوو: ذکر شوی آیت یې اکثم ته تلاوت کړ، اکثم د آیت په اوریدو وویل ددې نه معلومیږي چې دی د ښو اخلاقو هدایت کوي او د ناوړه او رذیلو اخلاقو څخه منع کوي تاسې ټول دده په دین کې ډیر ژر داخل شئ څو د نورو خلکو څخه وړومبی او مخکې شئ او تابع جوړ نه شئ.

همدارنګه حضرت عثمان بن مظعونﷺ فرمايي چې همدې آیت زما په زړه کې ایمان محکم او راسخ کړ، ددې آیت له اوریدو مخکې می ایمان راوړئ ؤ خو په زړه کې می مظبوط نه ؤ،

په آیت کې په دریو شیانو حکم او له دریو شیانو څخه منع راغلې ده: په عدل، احسان او خپلوانو ته دې ورکړې حکم دی، د فحش کار، د بد کار او ظلم څخه یې منع کړیده؛ د هر یوه لنډه شرح دا ده:

**عدل:** د عدل اصلي معنا برابري ده، د خلکو په جګړه ایزو معاملو کې په انصاف سره د حاکمانو فیصلې ته عدل وایی، په قرآن کریم کې«**أَن تَحْكُمُواْ بِالْعَدْلِ**» په همدې معنا راغلی دی او په دې لحاظ سره د عدل لفظ د افراط او

تفریط په منځ کې اعتدال ته هم ویل کیږي. او ځنو مفسرینو د دې لفظ معنا د ظاهر او باطن په برابرئ سره کړې ده. او اصل حقیقت دا دی چې دلته د عدل لفظ په خپله عامه معنا کې دی کوم چې دې ټولو صورتونو ته شامل دی، مثلاً انسان د خپل نفس او خپل رب په منځ کې عدل کوي نو معنا به دا شي چې د الله تعالی حق د خپل نفس په لذت او د هغه رضا په خپلو غوښتنو مقدم ګڼي او له منع شویو نه یې مکمل ځان ساتي.

دوهم عدل دا دی چې بنده د خپل نفس سره د عدل معامله کوي یعنې خپل نفس له ټولو هغو شیانو څخه بچ ساتي چې دده جسماني او روحاني هلاکت په کې وي.

او د نفس داسې خواهشات نه پوره کوي چې پایله یې مضره وي او د قناعت او صبر نه کار اخلي په نفس زیات بوج نه اچوي.

دریم د خپل نفس او ټولو مخلوقاتو په منځ کې عدل کوي یعنې د ټول مخلوق سره د خیر غوښتنې معامله کوي.

**الاحسان:** ددې لفظ اصل لغوي معنا ده ښه کول او ددې دوه ډولونه دي: یو دا چې کار یا اخلاق او عادتونه په خپل ذات کې ښه او مکمل کړي، دویم دا چې د بل سړي سره ښه سلوک او غوره معامله کوي.

او د حضرت جبرئیل علیه السلام په حدیث کې د احسان معنا ده: د الله عبادت داسې کوه چې ګواکي ته الله وینې او که د الله تعالی د حضور دا درجه درته نصیب نه وي نو د دومره خبرې یقین خو هر سړي لره په کار دی چې حق تعالی دده عمل ویني او د الله د علم او نظر نه د کایناتو یوه ذره هم بهر نه شي پاتې کیدای.

لنډه دا چې دوهم حکم په آیت کې د احسان راغلی په دې کې د عبادتونو احسان د حدیث د تشریح موافق داخل دی او د ټولو عملونو، اخلاقو او عادتونو احسان او د ټول مخلوق سره ښه سلوک کول هم داخل دي، برابره خبره ده مسلمان وي او که کافر وي انسان وي یا حیوان وي.

امام قرطبي وایي که د چا د پیشو او په قفس کې بندو مرغانو صحیح خبر نه اخستل کیږي که هر څومره ښه عملونه کوي خو په محسنین کې نه شماریږي.

دریم حکم خپلوانو ته څه ورکول دي، په بل آیت کې یې مفعول ذکر کړی چې«**وَآتِ ذَا الْقُرْبَى حَقَّهُ**». یعنې خپلوانو ته حق ورکړئ، مال ورکول وي او که خدمت کول وي او که همدردي او خبر اخستل وي.

**د ممانعت او حرمت احکام پکې دا دي: الله د فحشاء، منکر او بغی څخه منع کوي:**

**فحشاء:** هر هغه کار یا خبرې ته ویل کیږي چې بد والی یې ښکاره او واضح وي، هر سړی هغه بد ګڼي، هغه وینا او کړنه ده چې په حراموالي او نا جائزوالي یې د اهل شرع اتفاق وي.

نو په اجتهادي اختلاف کې یو جانب ته منکر نشي ویل کیدای او د منکر په لفظ کې ټول ظاهري او باطني، عملي او اخلاقي ګناهونه داخل دي. او اصل معنا یې ده د حد نه تجاوز کول، مراد ورځنې ظلم او تیری دی، دلته که څه هم د منکر په مطلب کې فحشاء داخله ده او بغی هم خو فحشاء یې د انتهایی ناکاره والي او بدوالي په وجه سره جدا او اول بیان کړه او بغی یې ځکه جدا بیان کړه چې ددې اثر په نورو کیږي او ځنې وختونه دا زیاتي جنګ او جګړو او عالمي فسادونو ته رسیږي.

د حدیث ارشاد دی چې د ظلم نه پرته بله داسې ګناه نشته چې بدله او عذاب یې ژر ورکول کیږي.

معلومه شوه چې په ظلم باندې د آخرت سخت عذاب خو وي خو د آخرت د عذاب نه مخکې په دنیا کې هم الله د ظلم سزا ورکوي، لکه چې ظالم ته دا معلومه نه وي چې دا د فلاني ظلم سزا ده او الله د مظلوم سره د مرستې کولو وعده کړې ده.

دا شپږ ایجابي او تحریمي حکمونه دي که غور پرې وشي نو د انسان د انفرادي او اجتماعي ژوند د مکملې فلاح اکسیر نسخه ده الله تعالی دې په دې عمل کول زموږ نصیب کړي.
په دوهم آیت کې د عهد او ژمنې ماتولو حرمت دی: د عهد لفظ هغو ټولو معاملو او معاهدو ته شامل دی د کومو چې په ژبه سره التزام وکړی شي یعنې ذمه واري یې واخستی شي خواه قسم پرې وخوړی شي یا نه، خواه د څه کار کولو په اړه وي یا د نه کولو.
په حدیث کې راځي چې د قیامت په ورځ به د عهد ماتوونکو په شا یو بیرغ ودرولی شي کومه چې په میدان حشر کې به د دوی د رسوایی سبب جوړ شي.
دغه شان د کوم کار چې قسم وخوړل شي د هغه خلاف کول هم کبیره ګناه ده او په آخرت کې یې لوی عظیم وبال دی او په دنیا کې هم ددې په خاصو صورتونو کې کفاره لازمیږي.
د آیت په پای کې ذکر شوی صورت حال یې د مسلمانانو لپاره د آزموینښت ذریعه ښودلې ده چې الله ددوی امتحان اخلي چې آیا دوی د خپلو نفسونو د غرضونو او خواهشونو تابعداري کوي، ژمنه ماتوي او یا د الله حکم مني او نفساني غوښتنې قربانوي.

**د کلماتو معنا**

العدل: توحید او انصاف.

الاحسان: د الهي فرایضو ادا کول په ښه او کامله توګه او د اللهﷻ د بندګانو سره نیکي او احسان کول.

یعظکم: تاسو ته وعظ او امر په معروف او نهی د منکر څخه کوي.

عهد الله: د الله ﷻ وعده.

**د لوست میتود:** سوال او ځواب، ډله ییز کار، د خطابی فن.

**د لوست مرستندویه توکی:** درسي کتاب، د تفسیر شریف معتبر کتابونه، عکس لرونکی پوسترونه.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي او زده کوونکو د وضعیت تحلیل څخه وروسته تیر لوست چې د شرابو او قمار تحریم دی د پوښتنو په کولو سره د مبارکو آیتونو په رڼا کې ارزوي، وروسته د صحیح ځواب ورکولو څخه د نوي لوست سرلیک په غټ او ښکلي خط سره د ټولګی په تخته لیکي او د عکس لرونکو پوسترونو او د قرآني کلماتو د چارټونو د موجودیت په صورت کې هغه د ټولګي په مناسب ځای کې نصب او ځړوي او د نوي لوست ارتباط د تیر شوي لوست سره بیانوي او د اعوذ بالله او بسم الله په ویلو سره لومړی د ۹۰- ۹۱ مبارکو آیتونو تلاوت کوي د تجوید په مراعاتولو او د قرائت د اسلوبو سره موافق او وروسته بیا د لوست کلمات په تخته لیکي او زده کوونکي هڅوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>محترم ښوونکی د زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل ټولګي کې د تالار په شکل کښیني او د دریو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګی په وړاندې د خبرو کولو او خطابې یو میز جوړ کړي او د زده کوونکو څخه غواړي چې په خپله خوښه سره هر یو چې کولی شي د خطابې د میز مخې ته راشي او د عدل او احسان اسلامي مسؤولیت، د امر بالمعروف او نهی عن المنکر په اړوند خبرې وکړي او خپله بیانیه واوروي او ښوونکی د تشویق په خاطر ورسره پوره مرسته او همکاري کوي.<br>محترم ښوونکی د کنفرانس او خبرو کولو په پای کې د لوست مهم او کلیدي کلمات شفاهي |

| | |
|---|---|
| | بیانوي او د مبارکو آیتونو احکام زده کوونکو ته په مختصره او لنډه توګه ښیي.<br><br>**ارزونه**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د پوښتنو نه په استفادې سره زده کوونکي ارزوي.<br><br>**د لوست لنډیز** |
| ۱۰دقیقې | - (النحل) سورت په مکه مکرمه کې نازل شوی، او ۱۲۸ آیتونه لري.<br>- ددې سورت مبارک آیتونه په معاملاتو کې، په عدالت او احسان امر کوي او همدارنګه د خپلوانو او دوستانو سره احسان، صله رحمي او د شرعي او انساني حقوقو او د بې وزلانو او بیچاره ګانو سره مرسته کول او اسلامي امت ته د دواړو جهانو نیکی، سعادت او کامیابی بیانوي او خلک ورته رابولي.<br>- او همدارنګه د بدو، ناوړو او فحشو کارونو څخه چې عقلاً او شرعاً بد دي منع کوي.<br>- او همدارنګه د منکراتو له ارتکاب، ظلم او د خلکو له حق خوړولو څخه یې منع کوي.<br>- د ( ان الله یأمر ... ) مبارک آیت د امر بالمعروف او نهی عن المنکر په هکله تر ټولو جامع آیت دی. |
| ۵ دقیقې | **کورنی دنده**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب مطابق زده کوونکو ته کورنی دنده ورکوي. |

## دوه ویشتم لوست: د مور او پلار حقوق

**مخ: ۸۶**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د اسراء سورت د لوست اړوند مبارک آیتونه سم تلاوت کړي.
- د لوست مفاهیم ښه زده کړي او په خپل ژوند کې یې عملي کړي.
- د مور او پلار حقوق وپیژني او د هغوی سره همیش ښه سلوك او چلند وکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

امام قرطبی رحمه الله وایي چې په دې آیت کې الله تعالی د مور او پلار ادب او درناوی او له دوی سره ښه چارچلند د خپل عبادت سره یوځای واجب کړی دی. لکه په لقمان سورت کې د خپل شکر سره یې د مور او پلار شکر یوځای لازم کړی دی او وایي«أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ». یعنې: زما شکر اداء کړئ او د خپل مور او پلار هم. د مور او پلار د فرمانبر دارۍ اهمیت او چې د الله ﷻ د عبادت نه وروسته د مور او پلار فرمانبرداري د ټولو نه اهمه او د الله تعالی د شکر په شان د والدینو شکر اداء کیدل واجب دي.

د صحیح البخاري یو حدیث هم په دې ګواه دی چې د نبي کریمﷺ څخه یو سړي پوښتنه وکړه چې د الله په وړاندې د ټولو نه زیات محبوب عمل څه دی؟ دوی وویل: چې لمونځ په خپل مستحب وخت کې اداء کول، هغه بیا پوښتنه وکړه چېددې نه وروسته کوم عمل زیات محبوب دی؟ نو نبي کریمﷺ وفرمایل: چې د مور او پلار سره ښه سلوك کول.

په مسند احمد، ترمذي، ابن ماجه او مستدرك حاکم کې په صحیح سند سره د حضرت ابو درداءؓ څخه روایت دی چې نبي کریمﷺفرمایلي دي:(پلار د جنت د منځ دروازه ده، اوس ستا اختیار دی چې حفاظت یې کوې او که ضایع کوې یې). همدارنګه په بل حدیث کې راځي چې د الله تعالی رضا د پلار په رضا کې ده او د الله تعالی ناراضګي د پلار په ناراضګۍ کې ده. د ابن ماجه په روایت د حضرت ابو أمامهؓ څخه نقل شوی دی چې یوه سړي د نبي کریمؐ څخه پوښتنه وکړه چې په اولاد د مور او پلار څه حق دی؟ دوی وویل: چې«دا دواړه ستا جنت یا دوزخ دی» مطلب دا چې په اطاعت او خدمت کې یې جنت دی او په بی ادبۍ او ناراضګۍ کې یې دوزخ دی.

آن تر دې چې په بل حدیث کې راځي(و ان ظلما و ان ظلما و ان ظلما)، یعنې: د مور او پلار په نافرمانۍ او دوی ته په آزار رسولو به د جهنم عذاب وي اګر که مور او پلار په ده ظلم هم کړی وي، مطلب دا چې اولاد لره د مور او پلار نه د بدلې اخستلو حق نشته ګواکي چې دوی ظلم وکړي نو اولاد به د خدمت څخه لاس اخلي.

د هغې په روایت حضرت ابن عباسؓ نقل کړی دی چې نبي کریمﷺ فرمایي چې کوم خدمت کوونکی زوی خپل مور او پلار ته په رحمت او شفقت سره نظر اچوي نو د هر نظر په بدله کې د یو مقبول حج ثواب مومي، خلکو عرض وکړ چې که دی د ورځې سل پیرې دغه شان نظر کوي، نبي کریمؐ وویل: بلې، سل پیرې هم به په هر نظر دغه ثواب مومي، الله تعالی لوی دی دده په خزانو کې هیڅ کمی نه راځي.

بیهقی په شعب الایمان کې د ابی بکرهؓ څخه نقل کړی چې نبي کریمؐ ویلي چې د نورو ټولو ګناهونو سزا خو الله تعالی چې چا ته وغواړي تر قیامته پورې یې وروسته کوي پرته د مور او پلار د حق تلفۍ او نافرمانۍ څخه چې ددې سزا د آخرت نه وړاندې په دنیا کې هم ورکول کیږي(دا ټول روایتونه د مظهري تفسیر نه نقل شوي دي).

هو! علما او فقهاء اتفاق لري چې د مور او پلار اطاعت يوازې په جائزو کارونو کې واجب دی او ناجائز يا د ګناه په کار کې د اطاعت واجب کيدل خو څه کوي؟ چې جائز هم نه دی، د دې حديث په بنا(لا طاعة لمخلوق فی معصية الخالق).
يعنې: د خالق په نافرمانۍ کې د کوم مخلوق اطاعت جائز نه دی.
هو! د مور او پلار د اطاعت او ښه سلوك لپاره د دوی مسلمانوالی هم ضروري نه دی، ځکه چې حضرت اسماء رضی الله عنها د نبي کريمﷺ څخه فتوی وغوښته چې زما مور مشرکه ده زما د ملاقات لپاره راځي آيا ماته جائز دي چې زه ددې سره ښه سلوك وکړم؟ نبي کريمﷺ ورته وفرمايل: صِلِی أُمَّكِ يعنې د خپلې مور سره صله رحمي کوه، او په قرآن کريم کې هم فرمايي:«وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا». يعنې: د چا چې مور او پلار کافر وي او ده ته هم د کافر کيدو حکم کوي نو په دې معامله کې دوی ته دا حکم منل جائز نه دي خو په دنيا کې به ددوی سره په معروفه طريقه سلوك کوي او د معروفی طريقې څخه مراد ددوی سره مدارات او ښه سلوك کول دي.
هو! فقهي مسئله ده چې تر څو پورې جهاد فرض عين نه وي ګرځيدلی يعنې د فرض کفايه په درجه کې وي تر هغه وخته د يو زوی لپاره دا جائز نه دي چې پرته د مور او پلار له اجازې په جهاد کې شريک شي. د مور او پلار خدمت کول او حکم منل په هر صورت کې ضروري دي خو د بوډاتوب په حالت کې يو څو تاکيدي احکام ذکر شوي دي:
اول دا چې دوی ته د اف قدرې څه مه وايئ د (اف) لفظ نه مراد هره داسې کلمه ده په کومې سره چې د خپل خفګان اظهار وي تر دې چې ددوې په خبره اوريدو کې داسې اوږده ساه واخلې چې نا خوښي پرې ښکاره کړې دا هم د اف په کلمه کې داخله ده، هدف دا چې د کمو نه کم آزار رسول هم مور او پلار ته منع دی.
دويم حکم:«وَلاَ تَنْهَرْهُمَا» د نهر معنا ده رټل چې سبب يې ازارول دي.
دريم حکم:«وَقُل لَّهُمَا قَوْلاً كَرِيمًا» اولني دوه حکمونه د منفی اړخ سره اړيکې لري چې مور او پلار ته پکې د ډير لږ شان آزار رسولو نه منع شويده، دا دريم حکم په مثبت اړخ کې د مور او پلار سره د خبرو کولو ادب ښيي چې ددوی سره په محبت او شفقت او نرمه لهجه خبرې کوئ.
حضرت سعيد بن مسيب وايی داسې خبرې بايد ورسره وشي لکه څنګه چې يو غلام د خپل سخت مزاجه مالك سره خبرې کوي.
څلورم حکم:«وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ» ددې مطلب دا دی چې د دوی په وړاندې خپل ځان د عاجز او ذليل سړي په بڼه کې وړاندې کوئ لکه غلام چې د مالك په وړاندې عاجز او ذليل وي.
د جناح معنا ده: اوږې يعني لفظي معنا يې دا ده چې مور او پلار ته خپلې اوږې په عاجزۍ او ذلت سره ښکته ساتئ او دا معامله بايد د ريا او ځان ښودنې لپاره نه وي بلکې د زړه د رحمت او عزت په بنسټ سره وي.
پنځم حکم:«وَقُل رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا» ددې مطلب دا دی چې مور او پلار ته پوره راحت رسول خو د انسان د وس خبره نده، د خپل وس مطابق دوی ته د راحت رسولو سره ددې لپاره د الله تعالی نه دعا هم غواړئ چې الله تعالی په خپل رحمت سره د دوی ټول مشکلات آسان او ستونزې لرې کړي، دا آخري حکم دومره وسيع او عام دی چې د مور او پلار د وفات نه وروسته هم جاري دی چې ددې په ذريعه سړی هميشه د مور او پلار خدمت کولی شي.
د ذکر شويو آيتونو په آخري آيت «رَّبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا فِي نُفُوسِكُمْ إِن تَكُونُواْ صَالِحِينَ فَإِنَّهُ كَانَ لِلأَوَّابِينَ غَفُورًا» کې يې هغه شبهه او زړه تنګي لرې کړيده چې د مور او پلار د ادب او تعظيم په هکله په ذکر شويو احکامو کې د اولاد په زړه کې پيدا کيدای شي، هر کله چې د مور او پلار سره هميشه اوسيدل دي ددوی او خپل حالات هم هر وخت يو شان

نه وي، کله کله د ژبې نه څه داسې کلمې وځي چې د آدابو خلاف وي، نو په هغه خو ددوزخ وعده ده دارنګه خو د ګناه بچ کیدل مشکل دي، په دې آیت کې یې دا شبهه او زړه تنګی لرې کړه چې پرته له ارادې که چیرته د بې ادبۍ څه کلمه د خولې نه وځي او بیا توبه وکړي، نو الله د زړونو په حال خبر دی چې دا کلمه د بې ادبۍ یا آزار لپاره نه وه، هغه معاف کوونکی دی.

**د کلماتو معنا**

قولاً کریما: نرمې خبرې.

واخفض: عاجزي او تواضع وکړه.

**د لوست میتود:** سوال او ځواب، یو کسیز، ډله ییز، تکرار.

**د لوست مرستندویه:** درسي کتاب، د تفاسیرو منابع.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د خوشحالۍ په صورت کې او د سلام په ویلو سره ټولګی ته داخلیږي او د احوال پوښتنې، حاضري اخیستلو، د ټولګی ترتیب او تنظیم څخه وروسته د زده کوونکو څخه غواړي چې یو تن د ټولو په استازیتوب سره خپله مقاله چې په وعدې او عهد وفا کولو تر عنوان لاندې ده ولولي او زده کوونکي تشویق کوي او بیا نوی لوست چې د مور او پلار د حقوقو په هکله دی د تیر لوست سره چې د عدل او احسان په باره کې و ارتباط ورکوي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی دوه تنو زده کوونکو ته وظیفه ورکوي ترڅو د لوست مبارک آیتونه چې د مور او پلار د حقوقو په هکله دي ډیر په سمه توګه او خشوع او ادب سره تلاوت کړي په دې وخت کې ښوونکی د نوی لوست مفردات او کلمات په تخته لیکي.<br>محترم ښوونکی د مبارکو آیتونو د ترجمې او تفسیر په رڼا کې د لوست په مفهوم رڼا اچوي او لازم توضیحات ورکوي او د زده کوونکو پوښتنو ته پوره توجه کوي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکي په دریو ډلو ویشي او دنده ورکوي چې په لنډه توګه د والدینو سره د نیکۍ او ښه چلند په هکله خپلو کې مباحثه وکړي. او بیا یو تن د هرې ډلې څخه پورته کیږي او خپل معلومات او نظریات ټولو ته بیانوي او ښوونکی ددوی کمی پوره کوي او مرسته ورسره کوي. |
| | **ارزونه**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د پوښتنو مطابق زده کوونکی ارزوي او پوښتنې ورڅخه کوي. |
| ۱۰دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>- په مبارکو آیتونو کې اول د الله ﷻ په عبادت او توحید تاکید شوی چې ټول انسانان باید د الله ﷻ توحید په ذات، صفاتو او اسماوو کې وپیژني او همدارنګه په ټولو مؤمن به شیانو کې اخلاص پرځای کړي.<br>- بیا د مور او پلار سره نیکي او ښه سلوک او د هغوی پوره حقوق ادا کول بیان شوي چې د دوی اطاعت واجب او لازم دی، باید هغه پرځای کړو او په نه کولو یې عظیمه ګناه او عقاب دی.<br>- مور او پلار هغو تکلیفونو له امله چې له خپل اولاد سره یې تېروي، په خپل اولاد ډیر حقوق لري، نو باید اداء شي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب مطابق زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. |

## درویشتم لوست: د خپلوانو، مسکینانو او مسافرو حقوق

**مخ: ۹۰**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د الاسراء سورت ۲۶- ۳۰ آیتونو باندې په سمه توګه پوه شي.
- د آیتونو څخه په لاس راغلي حقوقي مفاهیم جدا او تحلیل کړای شي؟
- په ټولنه کې ښه مفید وځلیږي او ښه خدمتونه وړاندې کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په تیر لوست کې د والدینو د حقوقو او د دوی د ادب او احترام بیان ؤ، په دې آیتونو کې د عامو خپلوانو د حقوقو بیان دی چې د هرې رشتې حق اداء کړی شي، دوهم د بې ځایه مال لګولو ممانعت دی د آیت څخه معلومیږي چې په هر سړي دده د عامو خپلوانو او دوستانو حق دی.

هدف دا چې کوم خپلوان د وس خاوندان وي په دوی د محتاجو او غریبانو خپلوانو نفقه فرض ده.

همدارنګه په قرآن کریم کې د بې ځایه زیات مال لګولو په هکله دوه لفظونه راغلي یو تبذیر بل اسراف، لکه چې الله تعالی فرمايي:«**وَلاَ تُسْرِفُواْ**». ځینې حضرات وايي چې دواړه لفظونه هم معنا دي، په څه ګناه یا بې ځایه مال خرڅولو ته تبذیر او اسراف ویل کیږي.

ځینې وايي چې په ګناه یا بالکل بې ځایه مال لګولو ته تبذیر ویل کیږي او کوم ځای چې د خرڅ کولو جائزه موقع خو وي مګر د ضرورت نه زیات خرڅ وکړي دیته اسراف وايي نو تبذیر د اسراف په پرتله زیات سخت دی او مبذرینو ته یې د شیطان وروڼه ویلي دي.

د تفسیر امام حضرت مجاهد رحمه الله وايي چې که څوک خپل ټول ما ل د حق لپاره خرڅ کړي نو دغه تبذیر نه دی او که یو مُد(یو پاو) هم د باطل لپاره خرڅ کړي نو دغه تبذیر دی.

حضرت عبدالله بن مسعودرضی الله عنه وايي چې د حق نه پرته بې ځایه ما ل لګول تبذیر دی(مظهری تفسیر).

امام مالک رحمه الله وايي: تبذیر دا دی چې انسان خو د حق مطابق ما ل حاصل کړي مګر د حق نه خلاف یې خرڅ کړي نو دا حرام کار دی(قرطبی).

امام قرطبی وايي چې په حرام او ناجائز کار کې خو یو درهم خرڅ کول هم تبذیر دی او په جائزو او مباحو خواهشاتو کې د حد نه زیات خرڅ کول چې په آینده کې د محتاج او فقیر کیدو خطره پیدا شي دا هم په تبذیر کې داخل دي. البته که یو سړی اصل پانګه محفوظه ساتي د هغې نفع په خپلو جائزو غوښتنو کې په فراخۍ سره لګوي نو دغه په تبذیر کې داخل نه دی.

**په مال لګولو کې باید له میانه روۍ څخه کار واخستل شي:** په ۲۹ آیت کې الله تعالی د اقتصاد ښوونه کوي چې نه د خلکو سره مرسته پریښودل شي او نه د خپل ځان لپاره مصیبت جوړ شي، ددې آیت په شأن نزول کې ابن مردویه د حضرت عبدالله بن مسعودرضی الله عنه او بغوي د حضرت جابررضی الله عنه په روایت یوه واقعه ذکر کړې ده چې د نبي کریمﷺ په خدمت کې یو هلک حاضر شو او عرض یې وکړ چې زما مور ستا نه یو کمیس غواړي، دغه وخت د نبي کریمﷺ سره پرته له اغوستل شوي کمیس څخه بل څه نه وه، هلک ته یې وویل چې بیا څه وخت

راشه کله چې زما سره څه پیدا شول ستا د مور حاجت به پوره کړم، هلك کور ته ولاړ او بیرته راغی ویې ویل چې زما مور وایی ستا په مبارك بدن کې چې کوم کمیس دی دغه راکړئ.
نبي کریمﷺ د بدن څخه کمیس وایستلو او ده ته یې ورکړ او په خپله بربنډ پاتې شو کله چې د لمانځه وخت شو، حضرت بلال آذان وکړ نو نبي کریمﷺ د لمانځه لپاره تشریف رانه وړ د صحابه وو سره فکر او اندیښنه پیدا شوه ځینې دننه ولاړل چې ویې لیده نو نبي کریمﷺ بربنډ بدن ناست ؤ نو ذکر شوی آیت نازل شو.
د قرآن کریم په لفظ«مَّحۡسُورًا» کې دې ته اشاره ده چې د کومو خلکو حوصله دومره اوچته وي چې د وروسته پریشانی څخه نه ویریږي او د اهل حقوقو حقونه هم اداء کولی شي د دوی لپاره دا پابندي نشته، همدا وجه ده چې د نبي کریمﷺ عام عادت دا وه چې د سبا لپاره به یې څه نه ذخیره کول او په صحابه کرامو کې هم ډیر داسې حضرات دي کومو چې د نبي کریمﷺ په وخت کې ټول ما ل د الله په لاره کې خرڅ کړه نبي کریمﷺ نه دوی منع او نه یې ملامت کړل.
ددې نه معلومه شوه چې ددې آیت ممانعت د هغو خلکو لپاره دی چې د لوږې او تندې تکلیف نه شي زغملی او د خرڅ کولو نه وروسته دوی ته افسوس وي چې کاشکي موږ خرڅ نه وی کړی، دا صورت به د دوی تیر عمل فاسد کړي په دې وجه یې منع وکړه.
هدف دا چې په آیت کې په بد نظمی سره مال لګول منع دي چې د راتلونکو حالاتو خیال نه کوي څه چې ورسره وي همدغه وخت یې خرڅوي نه د نورو محتاجانو خیال ساتي او نه څه د دیني ضرورت راپیښیدو په فکر کې وي، او نه د اهل او عیا ل کومه خرڅه چې دده په ذمه واجب ده د هغه په هکله فکر کوي او بالآخره د هغوی د حقوقو اداء کولو نه هم عاجز شي.
«مَلُومًا مَّحۡسُورًا» ددې الفاظو په هکله مظهري تفسیر لیکي چې د"ملوم" تعلق د اول حالت یعنې بخل سره دی چې که لاسونه په بخل سره بالکل بند کړي نو خلك به یې ملامتوي او د "محسورا" تعلق د لاس پراخوالي سره دی چې که په خرڅ کولو کې دومره زیاتی وکړي چې په خپله فقیر شي نو دی به محسور یعنې عاجز او بیکاره او افسوس کوونکی پاتې شي.

**د کلماتو معنا**

وآتِ: ورکړه امر لپاره د وجوب.
ذا القربی: خپلوان او د قرابت خاوندان.
ولا تبذر: اسراف مکوئ د اللهﷻ د اطاعت نه بغیر په نورو شیانو کې.
کفوراً: زیات ناشکره.

**د لوست میتود:** شفاهي بیان، په یو کسیزه توګه تلاوت، په ډله ییزه توګه کار.

**د لوست مرستندویه توکی:** درسي کتاب، تخته، تباشیر، د تفاسیرو او احادیثو منابع.

**د لوست بهیر**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي ترتیب او تنظیم او د کورنۍ دندې کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه د لنډو پوښتنو په کولو سره کوي. او د زده کوونکو مشکل حل کوي او د نوي لوست ارتباط د تیر لوست سره بیانوي.<br>محترم ښوونکی څلورو تنو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې په خپله خوښه د لوست څلور آیتونه هر یو په خپل وار سره ښه، په سمه توګه تلاوت کړي ددوی غلطي او اشتباهات اصلاح کوي.<br>محترم ښوونکی د لوست کلمات په چارت یا د ټولګی پر تخته لیکي او دآیتونو د ترجمې او تفسیر په وخت د اسلامي شریعت حقوقي نظام یعنې حقوق الله، د والدینو حقوق، د اقاربو حقوق، د مسکینانو او مسافرو حقوق او ټول حقوق العباد ښه تشریح او بیانوي او د زده کوونکو څخه غواړي چې د کلماتو په معنا کولو کې ورسره مشارکت وکړي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې د کتاب له مخې د مبارکو آیتونو تلاوت په یو کسیزه ډول وکړي او د تلاوت په آخر کې د ضعیفو زده کوونکو سره په ښه نرمه توګه مرسته او کمک کیږي او د لوست په کوم ځای کې چې مشکل لري هغه باید ورته واضح شي ترڅو پوه شي.<br>محترم ښوونکی د ژوندیو مثالونو په راوړلو سره د بی ځایه اسراف په هکله زده کوونکو ته پوره معلومات ورکوي چې بی ځایه اسراف په خوشې او چتې کارونو او رواجونو کې هسې عبث دی باید ونه شي، په دې سره سړی د ګناه مرتکب کیږي د بیلګې په توګه کله په ځینو ودونو او ځینو نورو غیر شرعي مواردو او رواجونو کې چې بې ځایه اسراف کیږي باید داسې اعمالو څخه ډډه وشي او زده کوونکو ته هدایت کوي چې په ډله ییزه توګه د بی ځایه غټ خرڅې او فضول خرڅې فهرست او لیست په خپلو کې تهیه او برابر کړي او ددې د محوې په هکله خپلو ټولګیوالو ته معلومات واوروي.<br>محترم ښوونکی د لوست مهم ټکي لکه: د الله ﷻ او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم حقوق، د والدینو حقوق، د اقاربو او خپلوانو حقوق، د مسکینانو او مسافرانو حقوق او دوی سره نیکي کول او د بې ځایه اسراف، بخل، امساك او سختۍ څخه ځان ژغورل او اعتدال او میانه روي ټول په شفاهي توګه زده کوونکو ته بیانوي. |
|  | **ارزونه**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د پوښتنو نه په استفادې سره زده کوونکي ارزوي.<br>**د لوست لنډیز:** |
| ۱۰دقیقې | - د (الاسراء) سورت چې د بنی اسرائیل، سورت په نوم هم یادیږي، په مکه مکرمه کې نازل شوی یو څه آخري آیتونه یې په مدینه منوره کې نازل شوي دي.<br>- د تیر لوست په مبارکو آیتونو کې د الله ﷻ حقوق، اطاعت، توحید او د مور، پلار سره نیکي کول ذکر شول او په دې آیتونو کې هم د ځینې اشخاصو حقوق او د هغوی سره نیکي کول بیان شوي لکه د خپلوانو، مسکینانو، فقیرانو، مسافرانو او محتاجانو سره، نو باید د دوی حقوق ورکړل شي او ورسره نیکي او مرسته وشي. |
| ۵ دقیقې | - همدا راز بې ځایه اسراف او فضول مصرف ونشي، مال باید د نیکی او خیر په لار کې مصرف شي او په مصرف کې باید د اعتدال لار غوره شي چې نه بخل او امساك وي او نه زیات فضول او اضافي مصرف.<br>**کورنۍ دنده**<br>ښوونکی د درسي کتاب مطابق زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. |

# څلورویشتم لوست: په معاملاتو کې عدالت او مسؤولیت

**مخ: ۹۴**

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست د مبارکو آیتونو احکام او مفاهیم ښه زده کړي.
- په معاملاتو (راکړه ورکړه) او د پیمانې پر وزن کې عدل او انصاف وکړي.
- د غرور او کبر د افعالو او اعمالو څخه ځانونه وژغوري او د لوست پیغام نورو ته ورسوي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

فقهاوو ویلي دي چې په آیت کې د ناپ او تول د کمي کوم حکم دی ددې مطلب دا دی چې چا ته حق کم ورکول حرام دي او کوم ملازم یا مامور چې په خپله وظیفه او ټاکلي کار کې کمی کوي یا وخت کم ورکوي دا هم پکې داخل دي. په بحر محیط تفسیر کې د«**أَوْفُوا الْكَيْلَ إِذا كِلْتُمْ**» آیت په هکله ابو حیان وایي چې په دې آیت کې د ناپ او تول پوره کولو ذمه واري په خرڅکوونکي غورځول شوې ده نو معلومه شوه چې د ناپ کولو او تول کولو ذمه وار خرڅکوونکی دی.

د آیت په آخر کې د ناپ او تول پوره کولو په هکله وایي«**ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلاً**» د صحیح ناپ او تول په هکله دوه خبرې فرمایي یو دا چې په دې کې خیر دی یعنې دا په خپل ذات کې ښه او غوره کار دی، د شریعت نه علاوه په عقلي او طبعي توګه باندې هم کوم شریف انسان د ناپ او تول کمي ته ښه نه وایي، دوهمه خبره دا فرمایي چې ددې پایله غوره ده ، د آخرت پایله ثواب موندل او جنت خو پکې داخل دي، ددې سره ددنیا د انجام غوره والي ته پکې هم اشاره ده چې یو تجار تر هغه پورې ترقي نشي کولای تر څو چې یې په بازار کې اعتبار قایم نه وي او هغه پرته ددې تجارتي دیانتدارۍ نه نشي کیدای.

د لوست په پاتې آیتونو کې د عام معاشرت او ژوندانه دوه حکمونه راغلي دي: اول دا چې پرته له تحقیق نه په څه خبره د عمل کولو ممانعت راغلی او د تحقیق درجې هم مختلفې دي یو داسې تحقیق چې د کامل یقین درجې ته ورسیږي د مخالف لوري هیڅ شک پکې پاتې نه شي، دویم دا چې د غالب ګمان په درجه کې راشي که څه هم د مخالف لوري احتمال پکې موجود وي، دغه شان احکام هم دوه ډوله دي: یو قطعي او یقیني دي لکه د عقیدې او ددین اصول، په دې کې د اولې درجې تحقیق مطلوب دی ددې نه پرته عمل کول جائز نه دي، دویم ظنیات چې په ګمان سره وي لکه د فروعي عملونو په هکله احکام.

ددې تفصیل نه وروسته د آیت مقتضی دا ده چې په قطعي او یقیني احکامو کې تحقیق هم چې د اولې درجې وي یعنې د قطعیت او کامل یقین درجې ته ورسیږي او که داسې نه وي، نو په عقیدو او د اسلام په اصولو کې ددې تحقیق اعتبار نشته، ددې په مقتضی عمل جائز نه دی او په ظني او فرعي کارونو کې د دویمې درجې یعنې د غالب ګمان د درجې تحقیق کافي دی.

**د غوږونو،سترګو او زړه په هکله د قیامت په ورځ سوال:** «**إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولـئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْؤُولاً**» په دې آیت کې یې دا لارښوونه کړیده چې د قیامت په ورځ به د غوږونو، سترګو او زړه څخه سوال کیږي یعنې د غوږونو څخه به سوال کیږي چې تاسو په عمر کې څه څه اوریدلي دي؟ د سترګو نه به پوښتنه کیږي چې تاسو په عمر کې څه څه لیدلي دي؟ د زړه نه به پوښتنه کیږي چې په ټول عمر کې دې کوم کوم خیالات او فکرونه کړي دي او په کومو شیانو دې یقین کړی دی؟ نو که په غوږونو یې داسې خبرې اوریدلې وي د کومو اوریدل چې شرعاً جائز نه وي لکه د چا غیبت یا حرام سازونه او سندرې او داسې نور، یا یې په سترګو داسې شیان لیدلي وي چې لیدل

يې شرعاً حلال نه وي لکه نا محرمه ښځو يا يې مخو هلکانو ته په بد نظر سره کتل او داسې نور. يا يې په زړه کې داسې عقيده ځاى کړې وي چې د قرآن او سنت نه خلاف وي يا د چا په هکله په خپل زړه کې بې دليله څه الزام قايمول وي نو ددې پوښتنو په پايله کې به په عذاب کې گرفتار وي.
په قرطبي او مظهري تفسير کې ددې دا مطلب هم بيان شوى چې ددې نه په وړاندې جمله کې چې کوم ارشاد راغلى دى «وَلاَ تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ» يعنې د کوم شي چې تاسو ته تحقيق او علم نه وي په هغه عمل مه کوئ، په دې پسې يې متصل د غوږونو، سترگو او زړه نه د سوال مطلب دا دى چې که کوم سړي بى تحقيقه مثلاً په چا څه الزام ولگاوه، او بى تحقيقه يې په څه خبره عمل وکړ، که دغه دداسې شي سره اړيکې لري کوم چې په غوږونو سره اوريدى شي نو د غوږونو څخه به سوال کيږي او که د سترگو د ليدو شى وي نو د سترگو نه او که د زړه د پوهې شى وي نو د زړه نه به سوال کيږي چې دا سړى په خپل الزام او په زړه کې په ځاى کړي خيا ل کې رښتونى دى يا دروغجن؟ په دې به د انسان اندامونه په خپله گواهي ورکوي.
په دويم آيت کې دوهم حکم دا دى چې په ځمکه باندې په تکبر او لويئ سره مه گرځه يعنې په داسې توگه مه گرځه چې تکبر، فخر او وياړ ترې ښکاره کيږي ځکه دا د بې عقلانو کار دى، گواکې نه ځمکه څيرلى شې او نه له غرونو څخه اوچتيدلى شې.
حضرت عبدالله بن مسعودﷺ وايې نبي کريمﷺ فرمايلي دي: په جنت کې به داخل نشي هغه سړى د چا په زړه کې چې د ذرې برابر هم تکبر وي. حضرت عمر فاروق اعظمﷺ په منبر خطبه ورکوله او ويې ويل چې ما د نبي کريمﷺ نه اوريدلي دي چې کوم سړى تواضع غوره کوي الله تعالى ده لره اوچتوي، نو دى خو په خپل نظر ورکوټى وي مگر د ټولو خلکو په نظر کې لوى وي او څوک چې تکبر کوي الله تعالى دى ذليلوي نو دى په خپل نظر کې خو لوى وي خو د خلکو په نظرونو کې د سپي او خنزير نه هم بدتر وي.

**د کلماتو معنا**

أوفوا: پوره ورکړئ.

الفواد: قلب، زړه.

**الحکمة**: موعظه.

**د لوست ميتود:** مباحثوي، توضيحي، سوال او ځواب.

**د لوست مرستندويه توکى:** درسي کتاب، د تفسير شريف کتابونه، عکس لرونکى پوسترونه.

**د لوست بهير**

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵ دقيقې | محترم ښوونکى د سلام، احوال پوښتنې، د ټولگي ترتيب او تنظيم او کورنى دندې څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي. |
| ۲۵دقيقې | محترم ښوونکى د لوست سرليک په ښه ښکلى او غټ خط سره د تختې پر مخ ليکي او د نوي لوست د موضوع او د تير لوست سره يې د ارتباط په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکوي او د ټولگي د زده کوونکو څخه يو ښه تکړه زده کوونکى چې ښه قرائت لري او په تجويد پوه وي، ټاکي چې د (الاسراء) سورت ۳۵- ۳۹ مبارک آيتونه په ښه لوړ آواز سره تلاوت کړي او وروسته څو تنه زده کوونکي يو يو آيت په وار سره تلاوت کوي.<br>ښوونکى زده کوونکو ته هدايت ورکوي چې د لوست کلمات خپلو کتابچو کې وليکي او په |

| | |
|---|---|
| حلولو او مفهوم یې ځان پوه کړي.<br>محترم ښوونکی د خپل شفاهي بیان په وخت کې د مبارکو آیتونو ترجمه او تفسیر بیانوي او زده کوونکو ته یې وړاندې کوي او وخت ورکوي چې خپلې پوښتنې او نظریات مطرح او وړاندې کړي.<br>ښوونکی زده کوونکي په څلورو ډلو ویشي چې هره ډله د لوست د متن یو مخ ولولي او ښوونکی ددوی لغوي او تلفظي مشکلات حل کوي او د زده کوونکو پوښتنو ته په ښه سترګه ګوري مناسب او قناعت ورکونکي ځوابونه ورکوي.<br><br>**ارزونه**<br>ښوونکی د درسي کتاب له پوښتنو نه په استفادې سره زده کوونکي ارزوي. | ۱۰دقیقې |
| **د لوست لنډیز**<br>ښوونکی د لوست لنډیز داسې بیانوي:<br>- د (الاسراء) د سورت ۳۵- ۳۹ مبارك آیتونه چې موږ ته په معاملاتو کې عدالت او مسؤولیت راپیژني چې ددې له جملې څخه عدالت په تله او ترازو کې دی.<br>- د تول کولو په وخت کې باید چې د وزن په تول کې ډیر فکر او پام وشي او د عدالت او انصاف څخه کار واخستل شي او په دې کې بې عدالتي او بی انصافي ډیره لویه ګناه ده، لکه څنګه چې دا موضوع د المطففین سورت بیان کړې کوم کسان چې په تله او تول کې کموالی او زیاتوالی کوي د هغو له پاره ډیر سخت او دردناك عذاب دی.<br>- همدا راز د هغو شیانو څخه چې انسان پرې علم ونه لري او همدارنګه د کبر، غرور او د خود خواهۍ څخه باید ځان وساتل شي. | ۵ دقیقې |
| **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست مفهوم او هغه آیتونه چې د عدل او انصاف په اړه دي د معاملاتو په هکله حفظ کړي. | |